د اسلامي اندود په رڼا کي

# د ژبو او لیک د پیدایښت تاریخ

لیکوال : پوهنمل زاهدي احمدزی

ګولډ میډلسټ

د اسلامي اُندوړیه مرناکي

# د ژبو او لیک د پیدایښت تاریخ








پوهنمل زاهدي احمدزی
ګولډ میډلسټ

- ایم ای اسلامیات
- ایم ای پښتو ادبیات
- فاضل وفاق المدارس

## د کتاب پېژندګلوي


- د کتاب نوم: د اسلامي اندود په رڼاکې د ژبو او لیک د پیدایښت تاریخ
- لیکوال : پوهنمل زاهدي احمدزی
- خطاط : سید محی الدین هاشمي
- خپرونکی: د اخلاص جریدې اداره
- د خپرېدو کال: ۱۳۷۷ هـ ش (۱۴۱۹ هـ ق - ۱۹۹۸ ع) کال
- د خپرېدو شمېر: پنځه سوه (۵۰۰) ټوکه
- د یوه ټوک بیه: (۵۰) کلداري





دانش کتابخانه، ډهکی نعلبندی قصه خوانی - پشاور

# فهرست

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ



# سریزه

د اسلام د سپېڅلي دين او د خاتم الانبياء حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د بختور او نېکمرغه بعثت له پيل څخه کفري او طاغوتي ملتونو چې په سر کې يې يهودي ملت ، نصراني ملت او مشرکان دي، د دغه حق او ژوند بخښونکي دين په خلاف نه پخلا کېدونکې دښمني پيل کړه . د اسلام او اسلامي امت د ځپلو او له منځه وړلو په تکل يې په هر اړخيزه توګه هلې ځلې وکړې، څو وکولی شي د خپلو جاهلي، محرفو او طاغوتي عقايدو او مذهبونو د حاکميت له پاره بيا لاره صافه او هواره کړي.

هغوی ټولو د دې ناولې موخې د تر لاسه کولو په تکل په ګډه سره د اسلام او اسلامي امت په خلاف مبارزه پيل کړه، مګر الله تعالی خپل حق دين او د دغه دين ګروهمنان بريمن کړل، او د شيطان ګوند يې ناکام کړ، لکه چې الله تعالی فرمايلي دي:

«وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعٰی إِلَى الْإِسْلَامِ ۚ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِئُوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِأَفْوَاهِهِمْ ۚ وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝ هُوَ الَّذِیْ أَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰی وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ

عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْكَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ۝ » (۱)

او بل څوک له هغه چا څخه ډېر ظالم دی؟! چې په الله تعالیٰ پورې له خپل ځانه دروغ تړي په داسې حال کې چې دی د اسلام دین ته بللی شي ، او الله تعالیٰ د ظالمانو قوم ته هدایت نه کوي . دوی اراده لري چې د الله تعالیٰ رڼا (محمدی شریعت) مړه کړي ، په خپلو خولو سره ، او الله تعالیٰ د خپلې رڼا پوره کوونکی دی ، که څه هم کافران د دغې رڼا اتمام بد ګڼي .

الله تعالیٰ هغه ذات دی چې خپل رسول (حضرت محمد) یې په هدایت او حق دین سره رالېږلی دی ، څو یې نورو ګردو دینونو سره د اسلام حق دین ته غلبه ورکړي . که څه هم دا برلاس تیا مشرکان بده ګڼي .

هو ، یهودیانو او مسیحیانو پر الله تعالیٰ باندې دا دروغ تړلي دي چې هغه ته یې د زامنو لرلو نسبت کړی دی . حضرت عزیر او حضرت عیسیٰ علیهما السلام یې د الله زامن ګڼلي دي (نعوذ بالله) او کله چې یې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مبعوث کړ او خپل آخری ، جامع او ابدي کتاب قرآن کریم یې پرې نازل کړ ، د هغوی د غه له ځانونو څخه جوړ کړي کافرانه او مشرکانه دروغ یې رد کړل او د دوی ادیان یې باطل وګرځول او ټولو ته یې د اسلام د مقدس دین د قبلولو حکم وکړ .

---

(۱) د الصف سورت ، ۷-۸-۹ آیاتونه ۶۱ سورت ، ۲۸ سپاره .

هغو د شیطان په لمسه نه یواځې داچې داسلام دحق دین له منلو څخه انکار وکړ، بلکې له دې سره یې داسلام او اسلامي امت دله منځه وړلو له پاره دهیڅ ډول وسیلې په کاراچولو څخه ډډه ونه کړه او داسلام او اسلامي امت په خلاف یې دمقابلې کولو اعلان وکړ، او دهغو دغه مقابله پر یوه محاذ نه وه، بلکې دخپلې ناولې موخې دکامیابۍ له پاره یې د مقابلې کولو مختلف محاذونه قایم کړل ، چې هغه محاذونه په لاندې ډول دي :

١- تبلیغاتي محاذ : دحضرت رسول اکرم ﷺ شخصیت ته زیان کول، پر اسلامي شریعت تورونه لګول .

٢- اقتصادي محاذ : پر مسلمانانو اقتصادي بندیزونه ، دسود دترویج هاند او په تجارتي اړیکو بندیزونه لګول .

٣- ناسیونالیزم : خپل قوم پر نورو غوره ګڼل او نورو ته سپک ګڼل .

٤- سیاسي محاذ : له نورو هېوادونو سره د اړیکو دمخنیوي هاند .

٥- پوځي محاذ : جنګونه کول او په جنګ کې دمسلمانانو ښکېلول .

٦- اجتماعي محاذ : دهر ډول خپلوۍ ، دوستۍ او موالاتو ختمول .

دغه وسایل د صلیبي جنګونو تر پای پورې وو چې له ٦١٠م څخه پیل تر ١٢٧٠م پورې یعنې شپږ سوه شپېته (٦٦٠) کلونه وو .

او له ۱۲۷۰ م څخه را په دې خوا کفري او طاغوتي ځواکونو د اسلام او اسلامي امت د ختمولو له پاره نور هم ځيني وسايل پرې اضافه کړل چې په لاندې ډول دي:

۷- تعليم او تربيه.

۸- خيريه مؤسسات.

۹- فرهنګي وسايل.

۱۰- د نسل تجديد

۱۱- غير اسلامي ګوندونه

او دغه ټول ما په خپل بل اثر کې چې نوم يې «فکري استعمار» دى، په تفصيل سره ذکر کړي دى. هغه ته دې مراجعه وکړای شي. دلته صرف درنو لوستونکو ته دومره يادونه کوم چې د تعليم او تربيې په محاذ کې يې اسلامي تاريخ مسخ کړى دى او هم يې په اسلامي ټولنه کې د اسلامي تاريخ فن د اسلامي امت له اذهانو څخه داسې غورځولى دى چې زده کوونکي ګومان کوي چې په اسلام کې د تاريخ فن بېخي وجود نه لري، ځکه چې فکري ښکيلاګر و تعليمي نصاب داسې عيار کړى دى چې صرف په انګليزو فرضيو باندې ولاړ دى او د لوېديځ د بې علمه او بې فرهنګه ذواتو يا د يهوديانو او مسيحيانو د اسلام د ښمنه مفکرينو لکه: ګولډ زيهر، بروکلمان، مارګليوت، اريک بريټمن او داسې نورو د غسې نصابونه جوړ او بيا يې په اسلامي هېوادونو کې خپلو ګوډاګي حکومتونو ته ورکړي دي چې خپلو تعليمي وزارتونو ته ورکړي او سپارلي دى، چې

کا پوله اته سوه کلونو راهیسې دې خو په اسلامي هېوادونو کښې لوستل کېږي .

استعمار په خپله دغه هاندکې د ومره بریالی شوی چې اوس په هرځه کې مسلمانان زده کوونکي او ښوونکي هماغو معلوماتو ته اعتبار ورکوي چې هغوی ورته لیکلي دي؛ هغه که دبشري تمدن په هکله وي ، که دانسان په ځمکه کې دمیشت کېدو په باره کې وي اوکه دتورځه په هکله وی . دمثال په ډول په ځمکه کې د بشر د میشت کېدو تاریخ یې پردرې ادوارو ویشلی : وحشی دور ، حجری دور او اوسپنیز دور ، دانسان مدنیت ، د لیک د مېنځته راتلو او دژبو د مهذب کېدو او خبرو کولو دوریې څلورنیم زره قبل مسیح ښودلی دی ، چې تر اوسه پورې شپږ نیم زره کلونه کېږي او له څلورنیم زر قبل مسیح څخه هغه خواته انسان په هیڅ هم نه پوهېده .

د همدغه کفري او گمراه کوونکی نظر په منلوسره له اسلامي تاریخ اوفرهنگ نه بې خبره وگړي داعقیده لري چې له شپږ نیم زره کلونوڅخه دمخه انسان په هیڅ هم نه پوهېده ؛ په داسی حال کې چې دالله تعالیٰ وروستنی جامع او ابدي کتاب قرآن کریم اوخاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مطهره احادیث پردې باندې گواهي کوي چې په ځمکه کې لومړنی انسان حضرت آدم علیه السلام دری سوه زره کلونه دمخه لیک لوست کړی دی ، دعلومو فنون یې خپلو بچیانو ته تعلیم کړي اوښودلی دی اوهمدا په ځمکه کې بشري

تمدن لومړي بنسټ ايښودونکی و.

مګر زمونږ د اسلامي امت د بې خبره وګړو په دماغوکې د اسلام د قسم خوړلو دښمنانو د پکښته شوی سبق داسې پوخ ځای نیولی دی چې په دغه برینوا شینک سره دخوی دماغونه او ماغزه تخدیر شوي دي او یا مادیانو داسې لیوني کړي دي چې اسلامي علوموا او ثقافت ته په دې اړوند نه خو مراجعه کوي او نه یې قبلولو ته چمتو والی ښکاره کوي، الاما شاء الله.

دغه کوچنی اثر هم په همدې اړوند هغه وخت ولیکه چې په یو اخبار کې مې د یو کمونسټ لیکوال مضمون ولوست چې دژبو او لیک د تاریخ او د ژبپوهنې پر موضوع لیکلی و.

نوموړي په دې هکله دخپلو کمونستو او ملحدو بادارانو نظریات تکې په تکې لیکلي وو، څو کولای زيهر یهودی ورځنه خوښ شي او په څېره کې یې زیاتوالی راولي.

خو ما په دې هکله هوډ ونیو چې دخپل اسلامي امت د نوي نسل د خبرتیا له پاره او د کافرانو د فکري استعمار له دغه ګمراه کوونکي نظرڅخه د ژغورلو په تکل په دې هکله د اسلامي تاریخ پوهانو او محققینو هغه نظر وړاندې کړم چې د تفاسیرو او احادیثو په رڼا کې یې لیکلی دي.

ګوندې وی چې د مسلمانو لیکوالو، ادیبانو او د اسلامي فرهنګ د مینه والو یا ملزمیه وشي او پر دغه تاریخي حقیقت پوه او خبر شي او خپل

راتلونکي تو کم ته حقايق وليکي . څو د اسلامي امت موجوده او راتلونکي توکمونه د طاغوتي وګړو او ځواکونو له اسلام دښمنه او کافرانه ګړوهې ښخه وژغوري . او په ناپوهۍ سره د هغوی د ګمراهۍ په لومه کې ښکېل نه شي . چې په دې سره اسلامي دعوت کړانو ادبيانو او ليکوالو خپل اسلامي رسالت او هغه ذمه واري اداء کړې وي چې الله تعالی پر دوی باندې له اسلام څخه د دفاع په اړه وند فرض کړې ده .

په درنښت

په لوهنمل جان محمد زاهدی احمدزی

لوګر - افغانستان

دوشنبه ، د ۱٤۱۸ هـ ق د ذوالقعدې ۱۲ مه

د ۱۳۷٦ هـ ش کال د کب ۱۸ مه

د ۱۹۹۸ ع کال د مارچ ۹ مه



# ژبه څه شی دی؟

**تعریف:** ژبې ته په عربي ژبه کې لسان ویلی کېږي ، او په دې کې شک نشته چې داوسنیو ټولو بشري ملتونو د ادبیاتو دواړه څانګې ، نثر دی که نظم د عربي ادب مرهونې دي او بیا په خاصه توګه پښتو ، فارسي ، اردو او د نورو عجمي ملتونو ادبیات او بیا عربي ادب د قرآن کریم په نزول او د نبوي احادیثو په ورود سره په نوې اوسنۍ بڼه کې منځته راغلي دي ، ځکه چې له نبوي بعثت څخه د مخه که څه هم عربي نظم او نثر موجود وو ، مګر دادب ډولونه ، دادبیاتو طبقه بندي ، ادبي فنون او ادبي علوم موجود نه وو . په هغو زمانو کې د ادب د کره کتنې له پاره صرف د مشرانو نظر هیڅانې کتنلی شو او بس .

مګر د قرآن کریم دا یو بل اعجاز دی چې پخپل نیکمرغه نزول سره یې عربي ژبې ته دا شرف وروبانبه چې په ادبي ډګر کې یې د چاپېریال د نورو ژبو مور او مقتدا وګرځوله. نن په ادبي ډګر کې هره ژبه او ژبپوهنه چې څه لیکي هغه کوم نوي نومښت نه دی بلکې د هغو ادبي اصطلاحاتو تعبیرونه او ژباړې دي چې په عربي ژبپوهنه کې ورته وضع کړای شوي دي، بلکې زیاتره اصطلاحاتو، خو یې په پښتو، فارسي، اردو او نورو ژبو هم تعبیر نه دی پیدا کړی، بلکې نیغ په نیغه یې هماغه عربي نوموني (اصطلاحات) پرې ایښي دي. د ساري په توګه: بدیع، بیان، قصه، صناعت، حقیقت، مجاز کنایه، توریه، عروض، قافیه، فصاحت، بلاغت، بحرونه او داسې نور ادبي اصطلاحات یادولی شو.

له همدې کبله عربي ادب د نورو مقتدا دی او د عربي ادب څرګند اوبنسټ قرآن او نبوي سنت دی، نو دلته زه هم د ژبې تعریف، په هغه اصطلاح سره کوم چې قرآن کریم او نبوي احادیثو ورته ښودلی ده. ځکه چې زما د غه تحقیقي اثر هم د قرآن، نبوي احادیثو، او اسلامي تاریخ په رڼا کې لیکل شوی دی.

اوس دې پوښتنې ته راځو چې ژبه څه شی دی؟

**ژبه:** ژبې ته د قرآن کريم په اصطلاح کې "لسان" ويلې شوی ده، چې جمع يې "اَلسِنَة" راغلې ده، او په قرآن کريم کې د ژبې دغه نوم په پنځه ويشت[25] آياتونو کې چې په د رويشتو[23] سورتونو کې راغلی دی د "لسان" کلمه ذکرشوې ده، چې دهغو له جملې څخه په دولسو[12] آياتونوکې د مفرد په صيغه ذکرشوی دی، چې په دوو[2] آياتونو کې د واحد متکلم په ضمير سره او په دريو[3] آياتونو کې د مخاطب په ضمير سره او په دريو[3] آياتونو کې د مفعول په صيغه او په اوو[7] آياتونو کې په مصدري صيغه ذکرشوی دی. او په ديارلسو[13] آياتونو کې د جمع په صيغه راغلی دی چې په يو آيات کې د غائب، په څلورو کې د جمع مخاطب او په شپږو آياتونو کې د جمع غائب په صيغو ذکر دی چې دادی د لته هماغه مبارک آياتونه ذکرکولی شي:

**د مفرد په صيغه:** الله تعالی د مائده په سورت کې د بني اسرائيلو په باره کې په اته اويايم[78] آيات، شپږم سپاره کې فرمايلي دي:

۱- لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ۝»

ترجمه: لعنت کړای شوی دی په هغو کسانو له بني اسرائیلو څخه چي کافران شوي دي، د داوُد علیه السلام په ژبه سره او د عیسٰی علیه السلام زوی د مریمې په ژبه سره، په سبب د دې چي دوی نافرماني کوله (د الله له احکامو څخه) او دوی وو چي له شرعي پولو څخه تېرېدل.

(۲) د ابراهیم د سورت په څلورم آیت، د یارلسمه سپاره کې یې فرمایلي دي:

"وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوۡمِهٖ لِيُبَيِّنَ لَهُمۡ ؕ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنۡ يَّشَآءُ وَيَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ۝"

ترجمه: او مونږ نه دی لیږلی هیڅ رسول، مگر خو لیږلی مو دی په ژبه د قوم د ده، د دې له پاره چي دوی ته د الله تعالیٰ دین بیان کړي، نو الله تعالیٰ لار ورکې کوی، هغه چي اراده یې وفرمایي، او لارښوونه کوي هغه چاته چي اراده یې وفرمایي، او همدی ښه غالب دی د خپل دین په انفاذ او په خپل هر تدبیر کې د بشپړ حکمت والا دی.

(۳) د نحل په سورت کې الله تعالی د قران د منکرینو او اعتراض کوونکو په باره کې په یوسل دریم آیت، څوارلسمه سپاره کې فرمایلي دي:

« وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ اِنَّمَا يُعَلِّمُهٗ بَشَرٌ ط لِسَانُ الَّذِيْ يُلْحِدُوْنَ اِلَيْهِ اَعْجَمِيٌّ وَّهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِيْنٌ ۝ »

ترجمه : او خامخا په تحقيق سره مونږ ته ښه معلوم دی چې بېشکه مخالفين وايي چې د دغه قرآن ښوونه حضرت محمد صلى الله عليه و سلم ته يو انسان کوي (مګر دوی غلطه خبره کوی) ځکه چې د هغه سړي (جبر يا يسار يا عائش يا يعيش) ژبه چې دوی نسبت د ښوود نې هغه ته کوي عجمي دی او دغه قرآن په سوچه، فصيحه او بليغه عربي ژبه دی.

(٤) د مريم په سورت پنځوسم آيت شپاړسمه سپاره کې الله تعالىٰ د حضرت ابراهيم، حضرت اسحٰق او حضرت يعقوب عليهم السلام په ستاينه کې فرمايلي دي:

« وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ۝ »

ترجمه : او مونږ دوی درې واړو ته له رحمت او پېرزوينې خپلې څخه ښښلی و نبوت او حکمت او دوی ته مو رښتيا ويونکې او چته ژبه ورکړې وه.

(٥) د شعراء په سورت کې څلور اتيايم آيت کې الله تعالىٰ د حضرت ابراهيم عليه السلام دوعاګانې ذکرې دی، چې هغه

د خپلو دوعا گانو په لړکې فرمایلی وو:

« وَاجْعَلْ لِّيْ لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْاٰخِرِيْنَ ٥ »

ترجمه: او ای زمار به ماته وگرځوه ژبه د نېکنامی په وروستنیو خلکو کې؛ یعنی د د اسې چارو توفیق راکړه چې راتلونکی نسلونه دهغو په وزله ز ماستاینه وکړي.

(٦) د شعراء د سورت په یوسل پنځه نوی یم (١٩٥) آیت، ٢٦ سورت، ١٩ سپاره کې الله تعالیٰ دقرآن کریم دصداقت په هکله فرمایلي دي:

« وَاِنَّهٗ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ٥ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ ٥ عَلٰى قَلْبِكَ لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ٥ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ ٥ »

ترجمه: او بېشکه دغه قرآن هرومرو نازل کړی شوی دی له طرفه درب د عالمیانو نازل شویدی په ده سره روح امانت گر پر زړه ستا باندې، د دې له پاره چې شې ته له وېروونکو څخه په ژبه عربي سوچه سره.

یعنې داقرآن کریم دبشر کلام نه دی، شعر، سحر او باطلې قصې نه دي، بلکه دالله تعالیٰ سپېڅلی او ابدي بې سیاله کلام دی، چې الله رب العالمین د حضرت جبریل امین په وزله ای محمد صلی الله علیه وسلم ستا په زړه نازل

کړې دی ، څو دغه قرآن ته لار ورکیو ته بیان کړي او
ستا د نبوت تصدیق او معجزه وي او مونږ د غه
قرآن په سوچه عربي ژبه نازل کړې دی.

(۷) د قصص په سورت ، څلور دېرشم (۳٤) آیت شلمه سپاره
۲۸ سورت کې الله تعالیٰ د حضرت موسیٰ علیه السلام په قصه
کې فرمایلي دي:

« وَاَخِیْ هَارُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّیْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ
مَعِیَ رِدْاً یُّصَدِّقُنِیْ اِنِّیْ اَخَافُ اَنْ یُّکَذِّبُوْنِ ٥ »

ترجمه: او زما ورور هارون د پر فصیح دی له ما څخه
له جهته د ژبې ، نو هغه هم له ما سره په نبوت ولېږه یار
او ملاتړ چې زما تصدیق کوي ، بېشکه زه له دې څخه
وېرېږم چې دوی (فرعونیان) به ما دروغجن کړي.

(۸) د احقاف د سورت په دولسم (۱۲) آیت ، شپږویشتمه
سپاره ، ٤٦ سورت کې الله تعالیٰ د قرآن کریم په صداقت
کې فرمایلي دی:

« وَمِنْ قَبْلِهٖ کِتٰبُ مُوْسٰۤی اِمَامًا وَّرَحْمَةً ط وَ
هٰذَا کِتٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِیًّا لِّیُنْذِرَ الَّذِیْنَ
ظَلَمُوْا ۖ وَبُشْرٰی لِلْمُحْسِنِیْنَ ٥ »

ترجمه: حال دا چې پخوا له دغه قرآن څخه د موسیٰ
علیه السلام کتاب (تورات) پیشوا لارښودونکی و، مؤمنانو

ته او د دغه قرآن دپخوانیو الٰهي کتابونو تصدیق کوونکی دی ، په داسې حال کې چې په عربي ژبه دی ، د دې له پاره چې دغه قرآن هغه څوک وویروي چې ظلم کوي او د نیکوکارانو له پاره زېری ورکوونکی دی .

(۹) د البلد د سورت په نهم (۹) آیت ، د پرشمه سپاره کې (۹۰) سورت کې الله تعالیٰ دهغو نعمتونو په لړکې چې انسان ته یې ورکړي دی ، فرمایلي دي :

« اَلَمۡ نَجۡعَلۡ لَّهٗ عَيۡنَيۡنِ ۝ وَلِسَانًا وَّشَفَتَيۡنِ ۝ »

ترجمه : آیا نه دي ورکړي مونږ ده (انسان) ته دوه سترګې اوآیا نه ده ورکړې مونږ ده ته ژبه او دوه شونډې چې خبرې پرې کوي او نورې اړتیاوې پرې پوره کوي .

## دخطاب په صیغه :

(۴) د مریم دسورت په (۹۷) آیت ، شپاړسمه سپاره ، (۱۹) سورت کې الله تعالیٰ دقرآن کریم په هکله فرمایلي دي :

« فَاِنَّمَا يَسَّرۡنٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ الۡمُتَّقِيۡنَ وَتُنۡذِرَ بِهٖ قَوۡمًا لُّدًّا ۝ »

ترجمه : بېشکه چې مونږ دغه قرآن ستا په ژبه اسان کړی دی ، د دې له پاره چې ته په دې سره متقیانو ته زېری ورکړې او جګړه کوونکی قوم پرې وویروې .

(۱۱) د الدُّخَان د سورت په (۵۸) آیت ، ۲۵ سپاره

(٤٤) سورت کې الله تعالیٰ د قرآن کریم په اړوند فرمایلي دي:

« فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ○ »

ترجمه: په تحقیق سره موږ د غه قرآن ستا په ژبه د دې له پاره اسان کړی دی چې پرې و پوهیږي، پند ورځخه واخلي او ایمان پرې راوړي.

(۱۲) د قیامت د سورت په (۱٦) آیت، (۲۹) سیپاره، پنځه اویایم سورت کې الله تعالیٰ د قرآن کریم د لوستلو د آدابو په لړ کې فرمایلي دي:

« لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ ○ »

ترجمه: مه خوځوه په دې قرآن سره ژبه خپله چې بیړه په پرې کوې.

## د واحد متکلم په صیغه:

(۳) د طٰه د سورت په (۲۷) آیت، (۱٦) سیپاره، (۲۰) سورت کې الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام په قصه کې فرمایلي دي چې کله الله تعالیٰ هغه په نبوت سره مبعوثاً وه نو هغه الله تعالیٰ ته داسې دعا وکړه او وې فرمایل:

« وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي ○ يَفْقَهُوا قَوْلِي ○ »

ترجمه: ای زما ربه! او زما له ژبې څخه غوټه پرانیزه، څو هغوی زما په دعوت او خبره باندې پوه شي.

(۱٤) د شعراء د سورت په دیارلسم آیت ، (۱۹) سپاره
(۲٦) سورت کې الله تعالیٰ فرمایلی دي چې موسیٰ علیه السلام
د بعثت په مهال کې وویل :

«قَالَ رَبِّ اَخَافُ اَنْ یُّکَذِّبُوْنَ ○ وَیَضِیْقُ صَدْرِیْ
وَلَا یَنْطَلِقُ لِسَانِیْ ○ »

ترجمه : موسیٰ علیه السلام وویل : ای زما ربه ! بېشکه
زه وېرېږم چې دوی فرعونیان به ماته د دروغــو
نسبت وکړي ، او بل دا چې زما سینه تنګېږي (غُصه راځي)
او بل دا چې زما ژبه نه چلېږي .

## د جمع په صیغـه :

(۱۵) د احزاب د سورت (۱۹) آیت ، (۲۱) سپاره (۳۳)
سورت کې الله تعالیٰ د منافقینو په باره کې فرمایلي دي :

« فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوْکُمْ بِاَلْسِنَةٍ
حِدَادٍ »

ترجمه : نو کله چې له دوی څخه د جنګ وېره لاړه
شي ، نو دوی تاسو ته په خپلو تېزو ژبو سره ضرر رسوي .

## جمع مخاطب :

(۱٦) د نور د سورت په پنځلسم آیت (۱۸) سپاره ، (۲٤)
سورت کې الله تعالیٰ مؤمنانو ته په خطاب کـــې
فرمایلي دي :

«إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُم بِهِ عِلْمٌ وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا وَهُوَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمٌ ۝»

ترجمه: کله چې واخیست تاسې دا تهمت (افک) په ژبو خپلو او په خپلو خولو سره مو ځنه خبره ویله چې تاسې ته پر هغې باندې هیڅ علم نه ؤ او تاسې دغه خبره ډېره اسانه (بې ګنا) ګڼله، حال دا چې دغه خبره د الله تعالیٰ په نزد کې ډېره لویه ده.

(۱۷) د روم د سورت په (۲۲) آیت، (۲۱) سپاره، (۳۰) سورت کې د ژبو د پیدا ایښت په باره کې الله تعالیٰ فرمایلي دي:

«وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْعَالِمِينَ ۝»

ترجمه: او د الله تعالیٰ د قدرت له ځینو نښو څخه د آسمانونو او ځمکې پیدا کول دي او ستاسې د ژبو اختلاف او بل ستاسې د رنګونو اختلاف دی، په تحقیق سره په دغه اختلاف کې ډېرې نښې او د الله تعالیٰ د قدرت دلیلونه دي د عالمانو له پاره.

(۱۸) د نحل سورت په (۱۱٦) آیت، (۱٤) سپاره، (۱٦) سورت کې الله تعالیٰ مؤمنانو ته په خطاب کې فرمایلي دي:

« وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلَالٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ط اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ○ »

ترجمه: او تاسې د خپلو ژبو د بيانولو له وجهې دروغ مه وايا ست، داسې چې دا حلال دى او دا حرام دى، د دې له پاره چې له خپلو ځانونو څخه پر الله تعالىٰ باندې دروغ جوړ کړئ. بېشکه هغه کسان چې دوى پر الله تعالىٰ باندې بهتان تړي، دوى به د الله تعالىٰ له عذاب نه خلاصى نه مومي.

## دجمع غائب په صيغه :

(۱۹) د آل عمران د سورت په (۷۸) آيت، دريمه سپاره کې الله تعالىٰ د اهل کتابو د ناوړه اعمالو دغندنې په لړکې فرمايلي دي:

« وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوْهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ ج وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ج وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ○ »

ترجمه: او بېشکه ځينې له دوى (يهوديانو او نصرانيانو) څخه هرومرو يوه ډله ده چې دوى د کتاب په لوستلو کې خپلې ژبې اړوي، د دې له پاره چې تاسې هغه له کتاب څخه

وکړئ؟ په داسې حال کې چې هغه له کتاب منزل من الله څخه نه وي ، او بیا دوی د خپلې وینا په اړوند وایي چې دا د الله تعالیٰ له جانبه دی ، حال دا چې هغه د الله تعالیٰ له جانبه نه وي . او دغه کتابیان پر الله تعالیٰ باندې دروغ وایي، حال دا چې دوی پوهېږي .

(۲۰) د نساء د سورت په (٤٦) آیت ، پنځمه سپاره کې الله تعالیٰ د یهودیانو په غندنه کې فرمایلي دي:

مِنَ الَّذِينَ هَادُوا يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهِ وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ○ "

ترجمه : ځینې له هغو کسانو څخه چې یهودیان شوي دي، اړوي د الله تعالیٰ خبرې او کلام له ځایونو څخه او وایي : مونږ واورېدله او مونږ ستا حکم ونه مانه او دغه یهودیان حضرت رسول اکرم ته وایي: واوره په داسې حال کې چې نه یې اورول شوې او دغه یهودیان د رَاعِنَا لفظ د ژبې په تاوولو سره وایي او په دین کې په عیب لګولو سره .

(۲۱) د نحل د سورت په دوه شپیتم (۶۲) آیت ، (۱۴) سپاره ، (۱۶) سورت کې الله تعالیٰ د کفارو په مذمت کې فرمایلي دي :

« وَ يَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ وَ تَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ اَنَّ لَهُمُ الْحُسْنٰى ط لَاجَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَ اَنَّهُمْ مُفْرَطُوْنَ ○ »

ترجمه : او دوی الله تعالیٰ ته ثابتوي هغه چې بد یې ګڼي دوی (لونه) او د دوی ژبې بیانوي دروغ او هغه دا چې دوی وایي دوی ته جنت دی . بېشکه چې دوی لره د دوزخ اور دی او بېشکه دوی به یکښې پرېښودلی شي .

(۲۲) د نور د سورت په (۲٤) آیت ، (۱۸) سپاره ، (۲٤) سورت کې الله تعالیٰ هغو کسانو ته خبر داری ورکړی دی چې په پاک لمنو مؤمنو ښځو د زنا تور او تهمت لګوي او فرمایلي یې دي :

« يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَاَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ○ »

ترجمه : په هغه ورځ کې چې شاهدي به ورکړي

پر دوی باندې ژبې د دوی او لاسونه د دوی او پښې

د دوی پر هغو اقوالو او افعالو چې وو دوی، چې

کول یې په دنیا کې.

(۲۳) د فتح د سورت په (۱۱) آیت، (۲۶) سپاره،

(۴۸) سورت کې الله تعالیٰ د منافقینو په مذمت کې

فرمایلي دي:

«يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ»

ترجمه: له جهاد څخه دغه پاتې کېدونکي منافقین

په ژبو هغه څه وایي چې د دوی په زړونو کې نشته»

(۲۴) د ممتحنه سورت په دوهم آیت، (۲۸) سپاره

(۶۰) سورت کې الله تعالیٰ د کافرانو په باره کې فرمایلي دي:

«إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاءً وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُم بِالسُّوءِ وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ ۝»

ترجمه: که چېرې دکافرانو پر تاسې باندې وس

برشي، نو دوی به ستاسې دښمنان شي او تاسې ته

به خپل لاسونه اوږده کړي، په وهلو او وژلو د تاسې

سره اوخپلې ژبې به اورن دې کړي په بدي ويلو ئتاسي سره او دوئ به دا خوښوي اوغواړي چې تاسي کافران کړي .




# په نبوي احاديثو کې

په نبوي احاديثو کې هم دلسان (ژبې) کلمه زښته ډېره استعمال شوې ده ، چې دلته دنموني په توګه صرف دوه درې ورڅخه ذکرکولی شي ، څو دډېرلولوستونکو ته معلومه شي چې په غير متلو وحی کې هم د متلو وحی (قرآن) په اتباع سره دغه کلمه مذکوره ده :

(۱) «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ لَيَقُولُ الْكَلِمَةَ لَا يَقُولُهَا إِلَّا لِيُضْحِكَ بِهِ النَّاسَ ، يَهْوِي بِهَا أَبْعَدُ مِمَّا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ، وَإِنَّهُ لَيَزِلُّ عَنْ لِسَانِهِ أَشَدُّ مِمَّا يَزِلُّ عَنْ قَدَمِهِ » (۱)

ترجمه : له ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې ويلي يې دي : رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلی دي : په تحقيق

---

(۱) بيهقي شعب الايمان ، دمشکوة په حواله ، ج ۲ ص ۴۱۳ ، باب حفظ اللسان .

کوم شخص چې د نورو په وړاندې داسې خبرې کوي چې هغوی پرې وخندوي ، نو دغه توقي په خپلو توقـو سره د جهنم هغې طبقې ته غورځیږي چې واټن یې د ځمکې له لرې والې څخه لرې دی . او د ژبې په ژبه سره د ده ښوئېدل ، د ده د پښې ونه باسي؛ څخه ډېر زیانمن دي .

(۲) ځکه چې د پښې په لغزش سره د ده جسم ته تاوان رسیږي، چې جبیره کېږي او بېرته روغېږي مګر د ژبې لغزش د ده ایمان ته زیان رسوي ، که توبه ونه باسي ، نو جهنم ته یې د اخلوي .

(۲) وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ : لَقِيتُ رَسُولَ اللهِ، صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ مَا النَّجَاةُ ؟ فَقَالَ : أَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ وَلْيَسَعْكَ بَيْتُكَ وَابْكِ عَلَى خَطِيئَتِكَ » رَوَاهُ احمد والترمذی(۱)

ترجمه : له حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چې ویلی یې دي : له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره زما لیدنه کاتنه وشوه او عرض مې ورته وکړ چې له ګناهونو څخه د خلاصون لاره څه ده ؟ راته یې وفرمایل :

---

(۱) د مشکوة په حواله ، ص ٤١٣ ، باب حفظ اللسان .

خپله ژبه قابو کړه او په خپل کور کې دې او سېږه او پر خپلو ګناهونو چې د مخه درڅخه شوي وي وژاړه.

(۳) وَعَنْ عَمَّارٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ ذَا وَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانٌ مِّنْ نَّارٍ »

(رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)

ترجمه: له حضرت عمار بن یاسر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې وبیلي دي: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي: څوک چې په دې دنیا کې دوه مخي وي د قیامت په ورځ به یې پر ژبه د دوزخ اور وي.

یعني داسې غوره مالي کوونکی چې دیوچا په وړاندې د هغه صفت کوي او بیا کله چې ورڅخه الوښا شي بیا نو بد رد پسې وايي غیبت یې کوي. دغه ډول دوه مخی شخص عملي منافق دی او حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د ده په کله سخت وعید بیان فرمایلی دی، څو مسلمانان نا وړه غیر اسلامي او غیر اخلاقي خوی پرېږدي.

دغه راز په عربي ادب کې ادیبانو په نظم او نثر کې د لسان لفظ استعمال کړی دی، لکه چې ابو تمام حبیب بن اوس الطائي متوفی ۲۳۲هـ د خپل دیوان حماسه په باب الجهاد کې ویلي دي:

أَعَارِيبٌ ذَوُو فَخْرٍ بِإِفْكٍ
وَأَلْسِنَةٍ لِطَافٍ فِي الْمَقَالِ [1]

ترجمه : د غه کلیوال او بانډ یچي وګړي پر خپلو دروا غږیدلو او پر خپلو ژبو په نرمو او خوږو ویناوو خبرو کولو فخر کوي.

او ابو طیب متنبي (أحمد بن حسین جعفي کندی) متوفی سنه ۳۵۴ هـ په خپل دیوان متنبي کې په قافیة النون کې د ابو شجاع عضد الدوله په مدح کې ویلي دي :

وَلَكِنَّ الْفَتَى الْعَرَبِيَّ فِيهَا
غَرِيبُ الْوَجْهِ وَالْيَدِ وَاللِّسَانِ (۲)

ترجمه : په هغوی یعنې عجمو کې ځوان عربي نابلد ه بنه بې وزله لاس لرونکی او جلا ژبه لرونکی یم . ځکه چې زما ژبه (متنبی) خبرې په عربي ژبه وو دکې دي او دوی ټول عجم او فارسي ویونکي دی .

دغه راز متنبی د خپل دیوان په قافیه الهاء کې مدحیه قصیده کې د ابو العشائر علی سیف الدوله په ستاینه کې ویلي دی:

تُنْشِدُ أَثْوَابُنَا مَدَائِحَهُ
بِأَلْسُنٍ مَا لَهُنَّ أَفْوَاهُ (۳)

---

(۱) دیوان حماسه ، باب الهجاء ص ۴۴۹ ، (۲) دیوان متنبی ص ۶۸۷

(۳) دیوان متنبی قافیة الهاء ص ۶۹۶ .

ترجمه: ممدوح موږ ته چې کوم خلعت راکوي او پېرزوینې رابانديکوي د هغوی مننه اوستاینه په داسې ژبو سره کوو چې خولې نه لري.

یعنې د حال په ژبو یې مننه کوو، ځکه چې د قال ژبې یې وس نه لري.

مطلب دا چې په عربي ژبه دود کې د لسان کلمه دومره ډېره استعمال شوې ده، چې د ټولو ذکر کول دلته ممکن نه دي، ځکه چې د موضوع د اوږدوالي سبب کرځي، او په همدغومره بس والی کوو.

**تعریف**: امام راغب اصفهاني متوفي (۵۰۳هـ / ۱۱۰۸ع) په مفردات القرآن کې ویلی دی:

"لسان مفرد دی او جمع یې اَلسُنٌ وَلُسُنٌ رادرومي."

او په معجم الوسیط او المنجد کې یې ویلي دي:

"دلسان د کلمې مذکر او مونث دواړه راځي. لکه اَلسِنَة چې مونث دی، لُسُنٌ او اَلسُنٌ او اَلْلِسَانٌ یې د مذکر صیغې دی. د غه راز دوی ویلي دي: لِسَان د سین په زور سره د غوښې هغې ټکړې ته ویلي کېږي چې په خوله کې ده. د خوراک خوند پرې معلوموي شي خواړه ستوني او بیاګېډې ته پرې تېروي شي اوخبرې پرې باندي کولی شي. د دغه تعریف عربي عبارت داسې لیکل شوی دی؛

«جِسْمٌ لَحْمِيٌّ مُسْتَطِيلٌ مُتَحَرِّكٌ يَكُونُ فِي الْفَمِّ وبه تلح لِلتَّذَوُّقِ وَالْبَلْعِ وللنُّطْقِ» (۱)

یعنی لسان (ژبه) د غوښې یو اوږد خوځېدونکی جسم دی په خوله کې چې په هغې سره خوند اخیستلی شي، طعام، اوبه او داسې نور پرې تېرولی شي او د خبرو کولو له پاره ده.

او که لَسِنٌ شي نو مراد ورڅخه ژبدود او خبرې کول دي چې په دې توګه د دواړو ماده او مصدر ایکی یو دی. ځکه په ادبي فنونو کې او هم په عام بشري عرف کې خبرو کولو ته ژبه ویل کېږي.

ځکه چې ژبه د محسوساتو او معنویاتو ترمینځ یو مشترک لفظ دی چې د غوښې پر دغې مشخص ټکړې هم د لسان اطلاق کولی شي او هم هغو خبرو ته لسان ویلی کېږي چې دغوښې پر دغه ټوټه اداء کولی شي، لکه چې په قرآني آیاتونو او د متنبي په اشعارو کې یې مثالونه ذکر کړای شول. زه چې په کوم لسان بحث او څېړنه کوم هغه معنوي ژبه ده چې په عربي ژبدود کې نور نومونه هم لري.

**نور نومونه:**

په عربي ژبدود کې د معنوي ژبې له پاره نور نومونه

هم شته ، چې نه یوازې په عربي ژبه کې ، بلکې په پښتو او فارسي ژبو کې هم کثیر الاستعمال دی ، او دغه ډول نومونو ته دیو مسمّٰی له پاره مختلف نومونه او الفاظ مترادف معنیٰ واحده ویلی کیږي ، چې دا دی دلته هریو له لنډو تعریفاتو سره ذکرکولی شي .

۲ـ اَللَّفْظُ : د لفظ جمع الفاظ دی ، په عربي ژبه دوکې لفظ د یو شي بهرته د غورځولو په معنا دی ، لکه چې عرب وایي : اَکَلْتُ التَّمْرَةَ و لَفَظْتُ النَّوَاةَ

یعنې خرما مې وخوړه او دهغې زړی مې وغورځاوه .

خبروته حکم لفظ او الفاظ ویلی کیږي چې ژبه یې بهرته غورځوي . دخبرو له پاره دغه نوم په قرآن کریم کې هم راغلی دی ، الله تعالیٰ د «ق» په سورت کې فرمایلي دی :

« وَمَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ اِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ۝ »

ترجمه : او نه وایي دغه بنده هیڅ خبره ، مګر څو وي له ده سره دوه ساتونکي (پرېښتې) حاضر او تیار چې ژر یې لیکي .

یعنې الله تعالیٰ له هر انسان سره دوه پرېښتې مقرري کړې دي چې په یو بل آیت کې یې کِرَامًا کَاتِبِيْنَ ورته ویلي دي او د دغو دوارو پرېښتو دنده او ماموریت دا دی چې

---

(۱) د ق ، سورت ، (۱۸) آیت ، ۲۶ سپاره ، ۵۰ سورت .

هر انسان هره خبره کوي، که دخير وي اوکه دشر، دثواب وي اوکه دعذاب هغه يې ليکي او دده داعمالو آرشيف ته يې سپاري. په دغه مبارک آيت کې خبرې ته الله تعالی „لفظ" فرمايلی دی. خبرې کوونکي ته لافظ ويلی کېږي.

۳- مَنْطِقْ: په عربي ژبه کې خبرو ته منطق هم ويلی کېږي او دغه نوم هم ډېر عام استعمالولی شي په پښتو او پارسي کې هم دخبرو له پاره د منطق نوم استعمالولی شي، په قرآن کريم کې هم الله تعالی دخبرو له پاره دغه نوم ذکر فرمايلی دی، لکه چې دنمل په سورت کې الله تعالی فرمايلی دي:

„وَوَرِثَ سُلَيْمَانُ دَاوُدَ وَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ..."

ترجمه: او ميراث واخيست سليمان عليه السلام له خپل پلار داؤد عليه السلام څخه دنبوت او پاچاهی ميراث چې په ۹۴۵ سنه قبل مسيح کې الله تعالی دغه دواړه عظيمې د ندې ورته عطا کړې او بيا حضرت سليمان عليه السلام خپل امت ته په

---

(۱) دنمل سورت، ۱۶، آيت، ۱۹، سپاره، ۲۷ سورت.

خطاب کې وفرمایل : ای خلکو! بیوولي شوی دی موږ ته خبرې د الوتونکیو مرغانو .

او همدارنګه الله تعالیٰ فرمایلی دي :

"وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ○ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ○" (۱)

ترجمه : او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم خبرې نه کوي له هوا خپلې ، نه دی دغه قرآن کریم مګر وحی ده ، چې ورته لیږل شي .

نطق : دغه ر از نطق هم ورته ویل کیږي ، خبرې کوونکي ته ناطق او خبروته منطوق ویل کیږي .

(٤) خطاب : په عربي ژبه د کې د معنوي ژبې څلورم نوم خطاب دی او خبروته په عربي ژبه کې خطاب ویل کیږي ، په پښتو او فارسي ژبو کې هم استعمالیږي . په قرآن کریم کې هم خبروته د خطاب نوم ورکړی شوی دی . لکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي :

"وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ○" (۲)

---

(۱) د النجم سورت ، ۳-٤ آیتونه ، (۲۷) سپاره ، ۵۳ سورت .

(۲) د هود سورت ، ۳۷ آیت ، ۱۲ سپاره ، ۱۱ سورت .

ترجمه: او الله تعالیٰ حضرت نوح علیه السلام ته وفرمایل: او له ما سره د هغو کسانو په حق کې له هغوی څخه په دفع د عذاب کې خبري مه کوه چې ظالمان (کافران) شوي دي، بېشکه پر دوی باندي د غرقېدلو حکم کړای شوی دی.

او په بل آیت کې یې فرمایلي دي:

«وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا وَّ اِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُوْنَ قَالُوْا سَلَامًا ○» (۱)

ترجمه: او د رحمن الله تعالیٰ نېک بندګان هغه وګړي دي چې پر ځمکه باندې په ورو او متواضع ګرځي او کله چې ناپوهان له دوی سره خبري کوي، نو په ځواب کې ورته وايي: السلام علیکم. یعنې د متارکې سلام ورته کوي او زیات بحث ورسره نه کوي، څو خپل عزت النفس مجروح نه کړي.

او په بل آیت کې یې فرمایلي دي:

«وَاٰتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ○» (۲)

---

(۱) د الفرقان سورت، ۶۳ آیت، ۱۹ سپاره، ۲۵ سورت.

(۲) د (ص) سورت، ۲۰ آیت، ۲۳ سپاره، ۳۸ سورت.

ترجمه : او مونږ داؤد علیه السلام ته نبوت ورکړی و او فیصله کوونکې خبرې کول.

او فرمايلي یې دي :

«رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا ۝» (۱)

ترجمه : الله تعالیٰ هغه ذات دی چې د آسمانونو او ځمکې رب او د هغو شیانو رب دی چې د دغو دواړو په منځ کې دي . نه به مالکان کیږي له د غه الله تعالیٰ سره د څواک لرلو د خبرو کولو . یعنې د قیامت په ورځ به هیڅوک هم له الله تعالیٰ سره د خبرو کولو قدرت ونه لري.

## (۵) قول :

د معنوي ژبې پنځم نوم قول دی او په عربي ژبه دو د کې د خبري نوم قول او جمع یې اقوال راځي او خبرې کوونکي ته قائل ويل کيږي او د خبرو له پاره د غه نوم ډېر زیات استعمال شوی دی . په قرآنکریم کې هم د غه نوم ډېر زیات راغلی دی ، لکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي ،

«فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى ۝» (۲)

---

(۱) د النساء سورت ، ۳۷ آیت ، ۳۰ سپاره ، ۷۸ سورت

(۲) د طٰه سورت ، ٤٤ آیت ، ۱۶ سپاره ، ۲۰ سورت

الله تعالیٰ حضرت موسیٰ او حضرت هارون علیهما السلام ته وفرمایل : چې دواړه فرعون ته ولاړ شئ او دعوت ورکړئ . پس ووایئ ده ته خبره پسته ، ښایئ چې دی پند واخلي او ستا رسالت ورته محقق شي ، یا له الله تعالیٰ څخه ووېرېږي او توحید قبول کړي.

او په بل مقام کې الله تعالیٰ فرمایلي دي :

« فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ ۝ » (۱)

نو تاسې د بتانو له پلیتۍ څخه چې هغوی ته عبادت کول او پر هغوی څاروي ذبحه کول او نذرانې ورکول دي، ځان ساتئ. او له دروغو ویلو څخه ډډه وکړئ. یعنې د دروغ خبرې مه کوئ، ځکه چې دروغ په ګناه کې له بت پرستۍ سره برابر دي او کبیره ګناه ده.

## (۶) اللُّغَة :

د معنوي ژبې شپږم نوم لغت دی چې عربي لغت پوهانو یې داسې تعریف کړی دی :

« اَللُّغَةُ : أَصْوَاتٌ يُعَبِّرُ بِهَا كُلُّ قَوْمٍ عَنْ أَغْرَاضِهِم

---

(۱) د حج سورت ، ۳۰ آیت ، ۱۷ سپاره ، ۲۲ سورت .

وَجَمْعُهَا لُغَاتٌ وَ لُغًى وَيُقَالُ : سَمِعْتُ لُغَاتِهِمْ : اِخْتِلاَفُ كَلاَمِهِمْ . " (۱)

ترجمه : لُغَتْ : هغه ږغونه او خبري دي چي ملتونه په هغو سره د خپلو موخو او مقاصدو څرګندوني کوي او جمعي لغات او لُغى راځي او ويلى شي : ماددوی خبري اوګردودونه واوريدل او دهغوی دګړدودونو او خبرو خپل منځي اختلافات مي وانګيرل .

## (۷) كلام :

د معنوي ژبي اووم نوم كلام دی .

خبروته په عربي اصطلاح كي كلام او خبري كوونكي ته مُتَكَلِّم او يوله بل سره خبرو كولو ته مكالمه ويلى كيږي . د قرآن كريم په ډيرو آياتونوكي دغه نوم مذكور دی ، چي دلته دهغو له جملي څخه يوڅو مبارك آياتونه د نموني په توګه وړاندی كولى شي .

الله تعالىٰ داعراف په سورت كي فرمايلي دي :

" قَالَ يَامُوسَىٰ إِنِّي اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسَالَتِي وَبِكَلاَمِي فَخُذْ مَا آتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ الشَّاكِرِينَ ۝ " (۲)

---

(۱) معجم الوسيط ، ج ۲ ص ۸۳۱ .

(۲) داعراف سورت ، ۹ سپاره ، ۱۴۴ آيت ، ۷ سورت .

ترجمه: الله تعالیٰ وفرمایل : ای موسیٰ زما په نلیدلو مه خفه کېږه. په تحقیق سره ما ته پر ټولو خلکو د خپلې زمانې غوره کړی یې په خپلو پیغامونو او په خپل کلام یعنې بې له واسطې خبروکولو سره، نو هغه څه په کروړتیا سره ونیسه چې ما تاته درکړي دي او له شکر ایستونکو څخه اوسېږه.

او په بل مبارک آیت کې یې فرمایلي دي:

«وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَاۤئِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ مَا يَشَاۤءُ اِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ ○» (۱)

ترجمه: او نه ښايي د یاره د هیڅ بشر داچې خبرې وکړي له ده سره الله تعالیٰ، مګر په وحی سره (په خوب کې یا په الهام سره) یا د پردې له شا څخه، یا الله تعالیٰ کوم رسول استاځی له پرښتو څخه لکه حضرت جبریل ور ته ولېږي پس هغه وحی یوسي په اذن د الله تعالیٰ سره چې الله تعالیٰ یې اراده وفرمایي. بېشکه دغه الله تعالیٰ ډېر اوچت غالب دی په انزال د وحی کې سبب حکمت والا دی.

---

(۱) الشوری سورت، ۵۱ آیت، ۲۵ سپاره، ۴۲ سورت

سربېره پر دغو دوو آیاتونو دري شپېته(۶۳) نور آیاتونه دي چې خبرو ته د کلام نوم په مختلفو ضیغو وربکې ذکر شوی دی، چې دلته دهغو ټولو راوړل موضوع طولاني کوي، لههمدې امله پر دغو مثالونو بس والی کوم.

# دژبې ډولونه

ژبه دعام فهم په اعتبار په دوه ډوله ده:
یو ډول یې هغه ده چې په خبرو یې هیڅوک نه پوهېږي پرته د کائیناتو له خالق څخه اویا هغه څوک پرې پوهېږي چې الله تعالیٰ یې د پوهولو اراده وفرمایي. دژبې دغه ډول ته په عامه اصطلاح کې د **حال ژبه** ویل کېږي. او دویم ډول د **قال ژبه** ده، او داهغه ژبه ده چې خبرې اترې پرې کوي او هرڅوک پرې پوهېږي. هرڅه په اسانتیا سره له یوه څخه بل ته انتقالولی شي.

## دحال ژبه:

دمخه په تعریف کې وویل شول چې د حال ژبه خلاف دقال له ژبې څخه ده او دغه ژبه ټول هغه

عالمونه لري چې بې خبره کوو له الله تعالیٰ قدرت نه وي ورکړی

لکه ونه، غنه، نباتات یعني هر ډول شنه بوټي او ګیاوې ترڅو
پرې کړای شوې او وچې شوې نه وي، کاڼي او د بري
ترڅو چې ماتې شوې نه وي، لمر، سپوږمۍ، ستوري،
آسمانونه او ځمکه، د وچې او سمندرونو ټول ژوي
او ساه لرونکي د حال په ژبه غږیږي او خبرې کوي او
د الله تعالیٰ تسبیح او حمد بیانوي، لکه چې الله تعالیٰ د
اسراء په مبارک سورت کې د دوی په اړوند فرمایلي دي:

«تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ
فِيهِنَّ ط وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ
وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ ط اِنَّهٗ كَانَ
حَلِيْمًا غَفُوْرًا ○ » (۱).

ترجمه: د الله تعالیٰ تسبیح وایي اووه واره آسمانونه او
ځمکه او ټول هغه څه چې په دوی کې دي. او نشته هیڅوک
له مخلوقاتو څخه مګر چې تسبیح وایي سره له ثناء د هغه الله
تعالیٰ مګر تاسې د هغوی په تسبیح ویلو نه پوهیږئ. بېشکه

---

(۱) د اسراء سورت، ۴۴ آیت، ۱۵ سپاره، ۱۷ سورت.

الله تعالیٰ به تحمل والا او بښونکی دی.

# د حال په ژبه د انبیاوو پوهېدل

الله تعالیٰ ځینو انبیاوو کرامو ته د مرغانو او نورو حیواناتو، خزنده وو او ژوو د حال په ژبه د خبرو کولو علم او پوهه ورکړې وه او بې له تکلیفه پرې پوهېدل، لکه چې حضرت سلیمان علیه السلام ته د منطق الطیر پوهه ورکړای شوې وه، لکه چې پخپله هغه ویلي دي او خپل اُمت ته یې اعلان کړی و چې: «عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ» (۱) یعني موږ ته د مرغانو پر خبرو باندې د پوهېدلو علم راکړی شوی دی. او نمونه یې الله تعالیٰ د نمل په سورت کې له هُدهُد سره د حضرت سلیمان علیه السلام د یالوګ او مرکه ذکر کړې او فرمایلي یې دي:

«منطق الطیر، وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ أَمْ كَانَ مِنَ الْغَائِبِينَ ۝ لَأُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَذْبَحَنَّهُ

(۱) د نمل سورت، ۱۶ آیت، ۱۱ سپاره، ۲۷ سورت:

أَوْ لَيَأْتِيَنِّي بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ○ فَمَكَثَ غَيْرَ
بَعِيدٍ فَقَالَ أَحَطتُّ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِ وَجِئْتُكَ
مِن سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ○ إِنِّي وَجَدتُّ
امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ
وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ○ وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا
يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ اللَّهِ وَزَيَّنَ
لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ
فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ○ أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي
يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ
مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ○ اللَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ
رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ○ قَالَ سَنَنظُرُ أَصَدَقْتَ
أَمْ كُنتَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ○ اذْهَب بِّكِتَابِي هٰذَا
فَأَلْقِهْ إِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانظُرْ مَاذَا يَرْجِعُونَ ○ (۱)

(۱) د نمل سورت ـ ۲۰ ـ ۲۱ ـ ۲۲ ـ ۲۳ ـ ۲۴ ـ ۲۵ ـ ۲۶ ـ ۲۷ ـ ۲۸ آیتونه، ۱۹ سپاره.

ترجمه: او حضرت سلیمان علیه السلام د مرغانو د فوځونو پلټنه وکړه او د هغوی حاضري یې واخیسته، نور ټول حاضر وو، مګر د ډاک ورونکی بی بی توتکه (هُدهُد) یې ونه مونده او هغه ناسوب و، نو حضرت سلیمان علیه السلام وویل:

حضرت سلیمان: څه مانع دی ماته چې زه د ډاک ورونکی بی بی توتکه نه وینم؟ چیرته غلی شوی دی او که بېخي حاضر شوی نه دی او ناسوب دی؟ کله چې دی راشي نو زه به هرو مرو دې ته سخته سزا ورکړم. مثلاً بندي به یې کړم، یا به یې وزرونه او بڼکې وشکوم، یا به یې هرو مرو ذبحه کړم یا به د خپل ناسوب والی او غائبتیا د منلو وړ عذر او دلیل راندې کړي.

هُدهُد: له لږې اسارتیا څخه وروسته بی بی توتکه حاضر شو او سلام یې وکړ.

حضرت سلیمان: تر اوسه پورې چیرته وې؟ ولې ناسوب شوی وې؟

هُدهُد: زه خبر شوی یم پر هغه څه باندې چې ته خبر نه یې او تا ته مې له سباء څخه ډېر لوی خبر راوړی دی، چې باوري خبر دی.

حضرت سلیمان : زر شه وایه چې دغه مهم خبر څه دی؟ چې ته اوسه پورې زما نه یم خبر شوی!؟

هُدهُد : ما په یمن کې یوه ښځه ولیدله چې د سباء د قوم په نارینه وُ حکومت کوي ، او دغې ښځې ته هر هغه شی ورکړی شوی دی چې پاچایانو ته ورکول شي . او ددې ښځې تخت ډېر لوی دی . بله دا چې ما دغه ښځه او هم ددې قوم ولید چې لمر ته سجده کوي بې له الله تعالیٰ څخه ، او شیطان دوی ته د دوی عملونه ښایسته کړي دي. پس دوی لره شیطان له سمې لارې څخه منع کړي ، نو دوی سمه صافه لاره نه مومي او هغه دا چې دوی الله تعالیٰ ته سجده نه کوي ، هغه الله تعالیٰ ته چې راوباسي هغه چې په آسمانونو او ځمکه کې پټ دي . هغه الله تعالیٰ چې ورمعلوم دی هغه څیز هم چې تاسې یې پټوئ پخپلو زړونو کې او هغه څیز هم چې تاسې یې پخپلو ژبو ښکاره کوئ. هغه الله چې نشته هیڅ لایق دعبادت مګر یوازې هم دی ، دی رب د ډېر لوی عرش دی .

حضرت سلیمان : حضرت سلیمان علیه السلام هُدهُد ته وویل : ژر به وګورو چې آیا تا دغه خبره رښتیا ویلې ده

یاکه یې ته له دږواغ ویونکو څخه. یو سه ته زما دغه
لیک اوفرمان، پس وغورځوه دغه لیک دوی ته، بیا مخ
جار باسه له دوی څخه او پټ نیږ دې ورته ودرېږه
پس وګوره له ورایه چې دوی په څه ځواب سره
رجوع کوي "

منطق النَّمۡلُ ؛ دغه راز الله تعالیٰ حضرت سلیمان
علیه السلام ته د خزندو د ژبه
د پوهېد و علم هم ورکړی و. لکه چې د نمل په سورت
کې د میږه ښتنو د یا چا خبرې او د حضرت سلیمان علیه السلام
په هغو د پوهېدلو ذکر فرمایلی دی :

وَحُشِرَ لِسُلَيۡمَانَ جُنُودُهُۥ مِنَ ٱلۡجِنِّ
وَٱلۡإِنسِ وَٱلطَّيۡرِ فَهُمۡ يُوزَعُونَ ○ حَتَّىٰٓ إِذَآ
أَتَوۡاْ عَلَىٰ وَادِ ٱلنَّمۡلِ قَالَتۡ نَمۡلَةٞ يَٰٓأَيُّهَا
ٱلنَّمۡلُ ٱدۡخُلُواْ مَسَٰكِنَكُمۡ لَا يَحۡطِمَنَّكُمۡ سُلَيۡمَٰنُ
وَجُنُودُهُۥ وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ ○ فَتَبَسَّمَ ضَاحِكٗا
مِّن قَوۡلِهَا وَقَالَ رَبِّ أَوۡزِعۡنِيٓ أَنۡ أَشۡكُرَ نِعۡمَتَكَ
ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتَ عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَيَّ وَأَنۡ أَعۡمَلَ صَٰلِحٗا

تَرْضَاهُ وَأَدْخِلْنِي بِرَحْمَتِكَ فِي عِبَادِكَ الصَّالِحِينَ ○ »(۱)

ترجمه: او د سلیمان له پاره د پېریانو، انسانانو او مرغانو لښکرې جمع کړای شوې وې، بیا به د وی ډلې ډلې ترل کېدلې، تر دې چې: «یو ځل د غزا له پاره له خپلو لښکرو سره روان وو» او د مېږیانو په کنده او سیمه د تېرېدو په مهال کې راغلل، نو د مېږیانو مشرې وویل: ای مېږیو! تاسو خپل ځانونه خپلو خپلو هستوګنځیو ته او سوړو ته، څو د سلیمان لښکرې تاسې څرموچ او مات او میده نه کړي، حال دا چې دوی به ستاسې له وژلو څخه هم خبر نه وي.

حضرت سلیمان علیه السلام چې د مېږ تنو دیا چا دا خبرې واورېدې، نو په موسکا سره یې وخندل د هغې له وینا څخه، او بیا حضرت سلیمان علیه السلام وویل: ای زما ربه! ما ته رایه برخه کړه دا چې زه شکر وکړم ستا د هغه نعمت چې تا انعام کړی دی پر ما او په پلار زما او بل دا چې زه نیک عمل وکړم هغه چې ته یې خوښوې او ما په خپلو صالحو بندګانو کې ننه باسه او یو ځای مې کړه له هغوی سره».

---

(۱) د نمل سورت، ۱۷-۱۸-۱۹ آیاتونه، ۲۷ سپاره، ۲۱ سورت.

# حضرت داؤد علیه السلام

په نورو علومو برسیره الله تعالیٰ حضرت داؤد علیه السلام ته هم له حضرت سلیمان علیه السلام څخه دمخه دمرغانو پر ژبه دپوهېدلو علم ورکړی و. ان تردی چې دجماداتو، کانو، بوټو، ونو، غرونو اوښارويو پهژبو دپوهېدلو علم ورسره و، او هغوی دحال په ژبه چې هرڅه ورته وويل حضرت داؤد علیه السلام به يې ځواب ورکاوه داځکه چې الله تعالیٰ غرونو اومرغانو ته حکم کړی وچې له حضرت داؤد علیه السلام سره په ګډه دالله تعالیٰ ذکروکړي نوهغوی به ورسره کاوه لکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي:

وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ وَكُنَّا فَاعِلِيْنَ ○ ⁽¹⁾

ترجمه: او تابع کړي وو موږ له داود سره غرونه چې تسبيح به يې ويله او همداسې موږ مرغان هم ورته تابع کړي وو او موږ ددغه کارکوونکي وو.

# حَضْرَتِ مُحَمَّد صلی الله علیه وسلم

امام الانبيا حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته هم الله تعالیٰ د معجزې په توګه د حيواناتو په ژبه د پوهېدلو

---

(۱) دانبیاء سورت، ۷۹ آيت، ۱۷ سپاره، ۲۱ سورت.

علم ورکړی و ، لکه چې د امام احمد بن حنبل مسند کې له حضرت
يعلی رضی الله تعالیٰ عنه څخه روايت شوی دی :

منطق البعـير : عَنْ يَعْلىٰ بن مُرَّةَ الثَّقَفِيِّ
قَالَ : بينا نَحْنُ نَسِيرُ مَعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ
وَسَلَّمَ إِذْ مَرَرْنَا بِبَعِيرٍ يُسْنىٰ عَلَيهِ . فَلَمَّا رَاٰهُ
الْبَعِيرُ جَرْجَرَ فَوَضَعَ جِرَانَهُ فَوَقَفَ عَلَيْـهِ
النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : اَيْنَ صاحِبُ هٰذَا
الْبَعِيرِ؟ فجاءَهُ فَقَالَ : «بِعْنِيهِ» فقَالَ : بَـلْ
نَهَبُهُ لَكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ، وَإِنَّهُ لِأَهْلِ بَيْتٍ مالَهُمْ
مَعِيشَةٌ غَيْرَهُ، قَالَ : أَمَّا إِذْ ذَكَرْتَ هٰذَا مِنْ أَمْرِهِ،
فَإِنَّهُ شَكَا كَثْرَةَ الْعَمَلِ وَقِلَّةَ الْعَلَفِ فَأَحْسِنُوْا اِلَيهِ.»[1]

ترجمه : له حضرت يعلی بن مرة ثقفي رضي الله عنه څخـه
روايت دی چې ويلی يې دي : يو ځل مونږ له رسول الله صلی
الله عليه وسلم سره رهي وو چې يو داسې اوښ باندې تېرېدو

---

(1) معجزات المصطفى ، ص ٨٦ - ٨٧ .

چې او بهٔ پرې راوړلی شوی. کله چې دغه اوښ نبي صلی الله علیه وسلم ولید، اوښ په ژړا شو او سلګۍ یې پیل کړې په سلګو شو، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته ودرېده او وې فرمایل: د دې اوښ څښتن څوک دی؟ او چېرته دی؟ د اوښ څښتن ورته راغی او حاضر شو. حضرت رسول اکرم صلی الله علیه السلام ورته وفرمایل: دغه اوښ پر ما باندې وپلوره. د اوښ څښتن وویل:

ای د الله تعالی رسوله! مونږ به یې تاته وړیا درکړو مګر دا دیو داسې کهول اوښ دی چې همدغه یو اوښ یې د روزۍ ګټلو ذریعه ده او له ده څخه پرته د روزۍ ګټلو بله ذریعه نه لري. حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل:

داسې چې نو که څرنګه چې تا د دغه کهول حالت بیان کړو ورسره دې وی مګر له دغه اوښ سره عاطفي او سنبه چلن کوئ، ځکه چې ماته اوښ د خپل څښتن له پلوه شکایت وکړ او راته یې وویل چې: کار پر ما باندې زیات کوي، خواړه او واښه لږ راکوي او پر ګیډه مې نه مړوي.

(۲) دغه راز امام دارمي په خپل سُنن کې د حضرت جابر رضی الله عنه مروي حدیث ذکر کړی دی چې په هغه کې هم حضرت جابر رضی الله عنه د یو بل اوښ کیسه روایت کړې

ده چې هغه هم رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د خپل څښتن په هکله شکایت وکړ ، حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم هغه طلب کړاو ورته وې فرمایل :

« فَأَحْسِنُوا اِلَيْهِ حَتّٰى يَاتِيَ اَجَلُهُ » (۱)

له دغه اوښ سره ښه چلن کوئ ، ترهغه پورې چې ژوندی وي او ستا سې به ولکه کې وي .

(۳) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ : اَرْدَفَنِىْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَهُ ذَاتَ يَوْمٍ فَأَسَرَّ اِلَىَّ حَدِيْثًا لَا اُحَدِّثُ بِهِ اَحَدًا مِّنَ النَّاسِ ، وَكَانَ اَحَبَّ مَا اِسْتَتَرَ بِهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهِ ، هَدَفٌ اَوْحَائِشُ نَخْلٍ . فَدَخَلَ حَائِطًا لِرَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَاِذَا جَمَلٌ فَلَمَّا رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَنَّ وَ ذَرَفَتْ عَيْنَاهُ ، فَاَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ سَرَاتَهُ اِلٰى سَنَامِهِ وَ ذِفْرَاهُ ،

---

(۱) سنن دارمي ، ج ۱ ، ص ۱۸ حدیث نمبر ۱۷ ، باب ما اکرم الله به نبیه ...

فَسَكَنَ فَقَالَ : مَنْ رَبُّ هٰذَا الْجَمَلِ ؟ لِمَنْ هٰذَا الْجَمَلُ ؟ فَجَآءَهُ فَتًى مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ : لِيْ يَارَسُوْلَ اللهِ ، فَقَالَ : اَفَلَا تَتَّقِي اللّٰهَ فِيْ هٰذِهِ الْبَهِيْمَةِ الَّتِيْ مَلَّكَكَ اللهُ اِيَّاهَا ؟ فَاِنَّهُ شَكَا اِلَيَّ اَنَّكَ تُجِيْعُهُ وَتُدْئِبُهُ ،، رواه ابوداود - والحاكم وابن عساكر واحمد .

ترجمه : له حضرت عبدالله بن جعفر رضی الله عنه څخه روایت دی چې ویلي يې دي : يوځل زه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله سورلۍ شاته ځان پسې سپور کړم ، نو ماته يې يوه پټه خبره وکړه او بيا يې راته وفرمايل چې زه هيچا ته هم هغه نه وايم . رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې خپل رفع حاجت کاوه ، نو ترڅو پورې چې به د پردې او پناه کولو څيز پيدا نه شو خپل حاجت به يې نه رفع کاوه . نو چې د دیوال يا دخرما ونه او يا کوم ځنګل به وو بيا به يې ضرورت رفع کاوه . نو د همدې موخې له پاره د يو انصاري کښروالي ته ننوت ، کوم چې هلته اوښ دی . کله يې چې نبي صلی الله علیه وسلم وليد ، نو اوښ ورته په ژړا شو او پرمخ يې اوښکې وبهيدې . نبي کريم صلی الله علیه وسلم اوښ ته نږدې ورغی او خپل

مبارک لاس یې د هغه پر شا، پرکوو او غوږونو باندې تېر کړ، دلاسا یې کړ، نو هغه آرام شو او ژړا یې بس کړه بیا رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

ددې اوښ خښتن څوک دی؟ او بیا یې غږ وکړ: دا اوښ دچا دی؟ دانصارو یو زلمی راغی او ویې ویل: ای د الله تعالیٰ رسوله! دغه اوښ زما دی.

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: آیا ته د دغه څاروي په باره کې له الله تعالیٰ څخه نه وېرېږې چې ته یې د دې خښتن کړځولی یې؟ ځکه چې دغه اوښ ماته شکایت وکړ او راته یې وویل چې ته دی وږی ساتې او ډېر یې ستړی کوې، یعنې کار ډېر پرې کوې. دا حدیث ابو داؤد، حاکم، امام احمد او ابن عساکر روایت کړی دی.

## منطق الحجر: دکاڼو پرشریعه پوهېدل

د الله تعالیٰ رسول الثقلین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته د کاڼو د حال د ژبې پرخبرو د پوهېدو علم هم ورکړی شوی وو لکه چې په صحیح مسلم کې له حضرت جابر رضی الله عنه څخه یو مروي حدیث کې مروی دی:

"عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنِّي لَأَعْرِفُ حَجَرًا بِمَكَّةَ كَانَ يُسَلِّمُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ أُبْعَثَ إِنِّي لَأَعْرِفُهُ الْآنَ " "رواه مسلم"

ترجمه: له حضرت جابر بن سمرة رضی الله عنه څخه روایت دی چې ویلي یې دي: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي: په تحقیق سره زه په مکه کې هغه تیږه پېژنم چې پرما باندې به یې پخوا له دې څخه سلام کاوه چې زه په نبوت سره مبعوث شم، او اوس هم ماته هماغه تېږه سبه معلومه ده.

مطلب دا چې الله تعالیٰ خپلو ځینو خاصو بندګانو ته په خپله خاصه پېرزوینه د حال په ژبه د پوهېدلو علم عطاء کړی و، مګر دعامو وګړو له وسه څخه دا بهر دی چې د حال په ژبه پوه شي او په دې کې هم دالله تعالیٰ لوی حکمت دی او هغه دا چې ځینې وګړو او ذواتو ته یې پر ځینې نورو باندې اوچتوالی ورکړی دی په پوهې او علم سره او په نبوت سره، علم هم دا سې علم چې اکتسابی نه وی، بلکې لدُنّي علم وي دانسان په وس کې نه وي چې د ظاهري اسبابو

په وزله ځانته حاصل کړی شي.

# دقال ژبه

دقال ژبه خو متعارفه ده، هرڅوک یې پېژني بنا یې تعریف ته اړتیا هم ونه لري، ځکه همدغه ژبه ده چې هرڅه پرې پېژندلی شي او ټول مقاصد او مطالب پرې ترلاسه کولی شي.

## دقال ژبې ډولونه:

دقال ژبه دکلام او ویونکو په لحاظ په څلورډولونو باندې ویشل شوې ده، چې تفصیل یې په لاندې ډول ذکر کولی شي:

### (۱) دالله تعالیٰ کلام:

لومړی ډول دالله تعالی کلام دی چې دالله تعالیٰ له صفاتو څخه دی او دالله تعالیٰ کلام په نورو ټولو کلامونو کې غوره او ممتاز کلام دی او داسې خصوصیات لري چې په بل هیڅ کلام کې نشته او نه به کله پیدا شي، او هغه خصوصیات که څه هم دانسان د پوهې له چمبې څخه بهر دی او ټول احاطه کولی نه شي مګر یوڅو یې په لاندې ډول داسې خصوصیات دي چې پر نورو کلامونو یې ممتازوالی راولی او هغه دا دي:

**خصوصيات :** دالله تعالیٰ دمقدس او سپېڅلي کلام څو خصوصيات دادي :

(۱) دالله تعالیٰ کلام ازلي دی ، هيڅ ابتداء نه لري.

(۲) دالله تعالیٰ کلام ابدي دی ، هيڅ پای او انتهـــا نه لري . تل پاتې او همېشه دی او تل ترتله به وي .

(۳) دالله تعالیٰ کلام بې ساري او بې سياله دی .

(٤) دالله تعالیٰ کلام له هر ډول نقصان څخه منزه او سپېڅلی دی ، هيڅ ډول عيب نه لري ، له تمامو هغو عيبونو څخه پاک دی چې د مخلوقاتو په کلامونو کې موجود وي .

(۵) دالله تعالیٰ کلام دالله تعالیٰ د ذات په شان قديم دی په داسې حال کې چې دمخلوقاتو کلامونه حادث دي .

(٦) دالله تعالیٰ کلام هيڅ ډول وسايلو ته اړتيا نه لري لکه ژبه ، پوهه او داسې نور ، په داسې حال کې چې دمخلوقاتو کلام ورته اړتيا لري .

(۷) دالله تعالیٰ کلام نه صرف کلام ويلی شي ، ژبه ، منطق او نور نومونه ورته ويل روا نه دی

(۸) دالله تعالیٰ کلام بلا کيف دی

(۲) **د پرېښتو کلام:**

په مخلوق کې لومړی کلام د

پریښتو دی. د هغوی د کلام د څرنګوالي اصلي حقیقت یوازې الله تعالیٰ او بیا پخپله دوی ته معلوم دی ځکه چې پریښتو ته او سه له بشري انبیاوو سره د الله تعالیٰ په امر خبرې کړې دی او هغه یې هم د بشري ژبو په کلام ورسره کړې دی، څو دوی د الله تعالیٰ په پیغامونو وپوهول شي.

## (۳) د پیریانو کلام:

دریم ډول کلام د پیریانو دی. او له انسان څخه د مخه پیریان هغه مخلوق دی چې الله تعالیٰ د ځمکې د عمران له پاره پیدا او مامور کړي وو.

د پیریانو د کلام د حقیقت له پاره هم د اسلامي امت پوهانو دا نظر ورکړی دی چې د بشر له پیدا ښت څخه د مخه د دوی د ژبو د په هکله معلومات نشته، مګر د انسان له پیدا ښت او پر ځمکې له واکمنۍ څخه وروسته د پیریانو اقوام د ځمکې په ټولو سیمو کې اوسېږي. او په هره سیمه کې چې کوم بشري ملت اوسیږي پیریان هم د هماغه بشري ملت په ژبه خبرې کوي، خو له دې سره سره هغوی خپله ژبه هم لري چې په بشر کې له انبیاؤ څخه پرته بل څوک پرې نه پوهیږي.

(٤) د بشر کلام: په تاریخي لحاظ او په ځمکه کې

د ترویج له نظره په څلورمه درجه کې بشري ژبې او بشري کلام دی چې الله تعالیٰ دخپل بشپړ قدرت او دخپل وحدانیت له دلیلونو څخه ګرځولی دی.

که څه هم بشری کلام او ژبې دترویج په لحاظ له نورو ژبو څخه وروسته دی، خو هغه فضیلتونه او امتیازات چې الله تعالیٰ بشري ژبو ته ورکړی دی، هغه نه دحال په ژبه کې شته او نه دقال دژبې د پریښتو او پریانو په کلامونو کې موجود دی، چې دهمدغو فضایلو او امتیازاتو له امله الله تعالیٰ بشري کلام او ژبه د نورو مخلوقاتو پرژبو با ندې غوره او افضله ګرځولې ده.
او په کلامونو کې یې داسې اوچت مقام ورکړی دی چې بل یو کلام ته یې هم نه دی ورکړی.

## دبشري کلام فضیلتونه

هغه فضیلتونه چې الله تعالیٰ بشري ژبو ته ودیعت کړي دی او هغه ځانګړتیاوې چې بشري کلام یې پرې ممتاز کړی دی په لاندې ډول دي:

(۱) لومړنی فضیلت یې دادی چې الله تعالیٰ خپل ټول کتابونه د بشري ملتونو د سمون او لارښود دپاره په بشري ژبو نازل کړي دي او دغه کتابونه یې د هر ملت په ژبه ورنازل کړي دی، څو

هغوی د الله تعالیٰ پر اوامرو او منهیاتو باندې پوه شي
او پر هغوی باندې حجت قایم شي.

(۲) دویم فضیلت الله تعالیٰ بشري ژبو ته داورکړی
دی چې الله تعالیٰ له بشري انبیاوو سره د هغوی پر ژبو
کلام کړی دی؛ یعني له هر نبي سره یې د هغه پر
ژبه کلام کړی دی، د مثال په ډول: له حضرت
شیث، ادریس او نوح علیهم السلام سره یې په
سریانی ژبه، له حضرت ابراهیم علیه السلام سره یې په
کلدانی ژبه، له حضرت موسیٰ علیه السلام سره په عبراني
ژبه او له خاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم
سره یې په عربي ژبه کلام کړی دی. او دغه دواړه
هغه فضیلتونه دي چې الله تعالیٰ د بل هیڅ مخلوق ژبې
ته عطاء کړي نه دي.

(۳) دریم فضیلت الله تعالیٰ داورکړی دی چې ملائکو
په بشري ژبو انبیاوو ته د الله تعالیٰ وحی راوړې ده او
د انسانانو کړه وړه، اعمال او افعال د همدوی په ژبو لیکي،
څو د قیامت په ورځ له هغو کړو وړو څخه منکر نه شي چې په
دنیوي ژوند کې یې کړي دي او هر یو به خپله اعمالنامه
په خپله لولي، لکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي:
«وَكُلَّ إِنسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ ط

وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنْشُورًاo
اِقْرَأْ كِتَابَكَ ط كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًاo"[1]

ترجمه : او له هر انسان سره مونږ دهغه عمل لازم کړی دی په غاړه دده کې او دقيامت په ورځ به راوباسو ده لره يو کتاب غوړولی شوی چې دی به ورسره مخامخ شي او ورته به وويل شي : ولوله کتاب خپل نن ورځ خپل ځان ستا بس والی کوي پر تا باندې حساب کوونکی .

(٤) څلورم دا چې په دنيا کې دکائيناتو دپيدايښت تاريخ او دهر يو کميت او کيفيت او دهر يو دنده او ذمه واري په بشري ژبو ليکل شوی دی. دغه راز دټولو موجوداتو کمښت او زياتونه ، عمرونه او زوال او دهغه اسباب او عوامل يوازې او يوازې په بشري ژبو ثبت او ليکل شوی دي ، سره له دې چې دبېر يانو ژبه دانسان له ژبې څخه بېخوا موجوده وه ، مګر نه يوازې دا چې دهغوی ژبې ته دا امتياز ورنکړای شو ، بلکې پخپله پېريان هم پر دې باندې مجبوره کړای شول چې دبشريت ژبې زده کړې او پرهمدغو ژبو خبرې اترې ، افهام او تفهيم وکړي .

---

(١) دا سراء سورت ١٣-١٤ آيا تونه ، ١٥ سپاره ، ١٧ سورت

(۵) پنځم فضیلت الله تعالیٰ بشري ژبو ته دا ورکړي دي چې د ځمکې د عمران ، تهذیب ، تمدن ، علوم او معارف پر انساني ژبو ترسیم او لیکلی شوي دي . په کاینانو کې د ګردو اشیاؤ نومونه صرف په انساني ژبو کښېودلی شوي دي ، او یوازې په همدغو ژبو متعارف دي .

دا هغه فضائل دي چې هیڅوک هم انکار ورځنه نشي کولی او دا هم یو منلی شوی او ثابت حقیقت دی چې د مخلوقاتو له جملې څخه د هیڅ یو ژبې ته الله تعالیٰ دغه امتیازات عطاء کړي نه دي .

# د ژبې ارکان

ژبه یا په بل عبارت کلام یا خبری صرف دوه ارکان لري : ۱- توري ۲- اصوات

(۱) توري : په عربي ژبه دو کې حروف ور ته ویل کیږي او په انګریزي ژبه دو کې یې ALPH BATES بولي او په نورو بشري ژبه دونو کې مختلف نومونه لري .

(۲) اصوات : اصوات د صوت جمع ده او دا عربي نوم دی چې تعریف یې عربي ژبه دو یوهانو داسې کړی دی :

« اَلاَثَرُ السَّمعِيُّ الَّذِي تُحَدِّثُهُ تَمَوُّجَاتٌ نَاشِئَةٌ مِن اِهتِزَازِ جِسمٍ مَّا » (۱)

ترجمه: صوت هغه اوریدونکی اثر دی چې د یو شي د جسم له حرکت او خوځولو یا خوځېدلو څخه تولیدیږي.

په پښتو ژبه کې صوت ته ږغ (غږ) او اصواتو ته غږونه (ږغونه) ویل کیږي او په انګریزي ژبه کې (SOUND) سونډ ورته ویل شي.

مطلب دا چې د ژبې او کلام ارکان یوازې او یوازې همدغه دوه بنو دلی شوي دي. همدغه دوه کلیمه او یا کلام جوړوي او یا له کلام څخه جملې مینځته را دروي چې بشري مقاصد د لیکونو او کتابونو په بڼه کې تیارزورتخه کوي.

## توري جوړوونکی اندامونه

هغه آلات او وسائل چې حروف او توري جوړوي د بدن اووه (۷) اندامونه دي، چې هر یو یې په دې اړوند

---

(۱) المعجم الوسیط، ج ۱، ص ۵۲۷

بېلابېلي ېنځيزې دندې لري چې الله تعالیٰ ورته سپارلې دی او دالله تعالیٰ په حکم يې په بشپړه توګه ترسره کوي. اوهغه اووه اندامونه په لاندې ډول دی:

(۱) حنجره (۲) ستونی (۳) ژبه

(٤) اضراس (۵) دژبې اطرف (٦) شونډې

(۷) مری

داتمې او نهمې هجري پېړۍ نامتو مسلمان فیلسوف، مؤرخ محقق او سیاست پوه امام ابن خلدون متوفی ۸۰۸هـ په دې هکله داسې لیکلي دي:

«اِعْلَمْ اَنَّ الْحُرُوْفَ فِي النُّطْقِ كَمَا يَأْتِي شَرْحُهُ بَعْدُ هِيَ كَيْفِيَاتُ الْاَصْوَاتِ الْخَارِجِيَّةِ مِنَ الْحَنْجَرَةِ تَعْرِضُ مِنْ تَقْطِيعِ الصَّوْتِ- بِقَرْعِ اللَّهَاةِ وَاَطْرَافِ اللِّسَانِ مَعَ الْحَنَكِ وَالْحَلْقِ وَالْاَضْرَاسِ اَوْ بِقَرْعِ الشَّفَتَيْنِ اَيْضًا فَتَتَغَايَرُ كَيْفِيَاتُ الْاَصْوَاتِ بِتَغَايُرِ ذٰلِكَ الْقَرْعِ وَتَجِيءُ الْحُرُوْفُ مُتَمَايِزَةً فِي السَّمْعِ وَتَتَرَكَّبُ مِنْهَا الْكَلِمَاتُ الدَّالَّةُ عَلٰى مَافِي الضَّمَائِرِ»(۱)

---

(۱) تاریخ ابن خلدون، ج ۱ ص ۳۳-۳٤.

ترجمه: پوه شه چې ژبنی توري چې خبرې ورڅخه جوړېږي د هغو ژغونو کیفیتونه دي چې له حنجرې څخه ووځي او د ژغ له پرې کولو څخه جوړېږي، په خوځولو د ژوبې یا ژبگرې څخه او د ژبې له اطرافو، تالو، ستوني او غاښونو او د شونډو په حرکت او انضمام سره او بیا د هغه ژغونه د هغو اندامونو په تغیر سره متغیر کېږي او توري ورڅخه منځته را درومي.

یعنې د الف با انه ویشت (۲۸) توري د هغو اندامونو په اړولو را اړولو سره بیا د اصواتو په تغیر سره جوړېږي او د کائناتو د خالق لوی حکمت دی چې د بدن هر اندام ته یې مختلفې دندې تفویض کړې دي چې له حکم سره سم یې هر یو اداء کړي.

# دبشري ژبو شمېره

دبشري ژبو شمېره که څه هم په دقيقه توګه نه ده معلومه ، مګر په اټکل سره څېړونکو دخپلو معلوماتو له مخې د ژبو شمېر معلوم کړی دی ، لکه چې قاضي عبدالحليم اثر افغاني په خپل کتاب «پښتو ادب» کې ويلي دي :

« تراوسه پورې يعنې له بابا آدمه تر دې دمه اووه زره (۷۰۰۰) ژبې ويلې شوې دي چې دهغوله جملې څخه نن په ګرده نړۍ کې نهه سوه (۹۰۰) ژبې ويلې کېږي اونورې ټولې له خپلو ويونکو امتونو سره يای ته رسېدلې دي او هيڅ نښه يې هم پاتې نه ده . » (۱)

دقاضي اثرصاحب دغه اټکل صرف دژبو ديوه ول شمېر په هکله دی ، په داسې حال کې چې دژبو شمېر په دوو اعتبارو کولی شي ، چې دادی دلته هغه دوه اعتبارونه بېلابېل ذکر کولی شي :

---

(۱) پښتو ادب ، ص ۱٤

## په بنسټيز ډول :

په بنسټيزه توګه تراوسه پورې

اووه زره ژبې ويلې شوې دي چې نيمه سوه يې اوس له
خپلو ادبي ډولونو او فنونو سره موجودې دي او شپږ
زره يې مړې شوې او له منځه تللي دي ، هيڅ آثار او
باقيات ورڅخه پاتې شوي نه دي ، ځکه الله تعالیٰ کوم امتونه
چې دهغوی دسرکشۍ له امله تباه اوفناه کړي دی ، نو
هغوی يې له خپلو ټولو شتوسره داسې تباه کړي دي چې
هيڅ نښه ورڅخه پاتې شوی نه ده .

## په فروعي ډول :

په فروعي ډول د بشري

ژبو مجموعي او ټول شمېر درې سوه زره (۳۰۰۰۰۰) دی.
دا ځکه چې هره ژبه ، سلګونو څانګې لري او د لهجو په
لحاظ هره ژبه يو څورليځ او اصل لري او په سلګونو
څانګې لري چې دا ټولې دلته په دې ډول په ډېر
لنډيز سره دوه درې ژبې د نمونې او دليل په
توګه درنو لوستونکو ته وړاندې کوم :

# عربي ژبه

تاریخ پوهانو عرب پر دریو برخو ویشلی دي

(۱) **عرب بائده:** دا هغه عربي اقوام دي چې پخوا تېر شوي دی او له نړیوال تو پیان سره یې هرڅه لهجه ، شته او تمدنونه او ثقافتونه له منځه تللی دي .

(۲) **عرب عاربه:** یعني تو کمیز عرب چې اصلي مسکن یې یمن او نوری سیمې وې . حافظ ابن کثیر ویلي دي: دعرب عاربه وُ غټ اقوام دولس دی: (۱) عادیان (۲) ثمودیان (۳) جرهم (٤) طسم (۵) جدیس (٦) امیم (۷) مَدین (۸) عملاق (۹) عیل (۱۰) جاسم (۱۱) قحطان (۱۲) بنو یقطن (۱)

(۳) **عرب مستعربه:** دحضرت اسماعیل علیه السلا م اولاده وه چې په حجاز کې اوسېدل ، او دغه عرب پر دوو غټو څانګو ویشل شوي دي : قحطاني او عدناني بیا د بنو قحطان څلور ستري کورنۍ دی: ۱- قضاعه ۲- کهلان ۳- آزد ، ٤- حِمیَر . او بیا قُضاعه دغه لاندې کورنۍ لري:

---

(۱) البدایه والنهایه، ج ۱ ، ص ۱۲۰ . په خیارالقول کې دیادشم دبارهم لیکلي دي.

(۱) بنو کلب (۲) بنو تنوخ (۳) بنو جرهم (٤) بنو جهینه
(۵) بنو نهد (٦) بنو عُذره (۷) بنو اسلم (۸) بلی
(۹) سلیخ (۱۰) ضجعم (۱۱) تغلب (۱۲) نَمَرُ (۱۳) اسد
(١٤) تیم اللّات (۱٥) تیم الله (۱٦) کلب.

کَهْلَان: دغه لاندې پښې لري:
(۱) بُجَیلَه (۲) خَثْعَم (۳) هَمَدان (٤) کِنده
(۵) مُذحَج (٦) طی (۷) لخم (۸) جذام (۹) عاملِه

آزدی: (۱) اوس (۲) خزرج (۳) خُزاعَه
(٤) غسّان (۵) دَوْس.

عدناني قبایل دوه پلاره لري: ۱- مُضَر ۲- نزار
د مُضَر قبایل دوه غټې څانګې لري چې یوه یې
بنو خندف دی او بله یې قیس ده - د بنو خندف قبیله
دغه لاندې څانګې لري.



# قیس

- عدنان
  - غافق
- غطفان
  - عبس
  - زبیان
  - فزاره
  - مره
- عُصَر
  - غنی
  - باہلہ
  - الطفادة
  - العجلان
  - ہلال
- سلیم
  - مازن
  - جعده
  - قُشَیر
  - الحریش
- هوازن
  - سعد
  - نصر
  - حثیم
  - ثقیف
  - سلول
  - بنوعامر
    - بنوہلال
    - بنونمیر
    - بنوکعب
- محارب
- فہم

دغه‌راز له دغه‌هریو څخه لس ګوني قبیلې دي چې
هره یوه بېله بېله ژبنۍ لهجه لري چې مجموعي شمېر
یې (۳۹۲) ته رسېږي او په دوی کې د مصر او عراق
مستعربه هم شامل دی. (۱)

# معیاري عربي لهجه
# قریشي لهجه ده

دعربي ژبې په دري‌سوه دوه نوي موجودو او پخوانیو
ګردو لهجو کې قریشي لهجه معیاري عربي لهجه ده
او په هره زمانه کې شعر او نثر دعربو ادیبانو او لیکوالانو
ټولې لیکنې په قریشي مُضَرِي لهجه لیکلې دي. لکه
چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له نیکمرغه پیدایښت
څخه څلوېښت کاله د مخه د جاهلیت د دور نامتو شاعر
امراء القیس خپله مشهوره قصیده په قریشي عربي لهجه
ویلې ده. دغه راز طرفه بن العبد، دُرَید بن الصِّمَّة،
نابغه ذبیاني، زُهیر بن ابی سلمی، عنتره عبسي، أعشی،

---

(۱) انساب الاشراف، الفهرست، معجم البلدان، ابن هشام، جوامع السیرة
سیرة النبیؐ.

عمره بن کلثوم [1] او داسې نورو په قریشي لهجه اشعار
ویل او خپلې قصیدې به یې د کره کتنې له پاره د
کعبې پر دیوال ځړولې. قریشو به چې د هر شاعر
قصیده له ادبي فنونو سره سمه وګڼله هغه به یې کردو
کې ممتازه وه.

او د دې لامل محققینو داسې ښودلی چې: هغه فصاحت
بلاغت، روانې، لفظي او معنوي محاسن چې د قریشو
په عربي لهجه کې دي په نورو عربي لهجو کې نه لیدل
کېږي. له همدې کبله الله تعالی د انسانانو او پیریانو
د هدایت او سمون له پاره خپل وروستی پیغمبر په قریشو
کې مبعوث کړ او خپل وروستنی جامع او ابدي کتاب
قرآن کریم یې د قریشو په عربي لهجه نازل کړ، او
حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د احکامو خپل سل زره
(یولک) احادیث او په نورو موضوعاتو کې ارشادات د قریشو
په عربي لهجه بیان فرمایلي دي. او بیا خلفاء راشدینو خپل آثار،
سیرت او مغازي لیکونکو او فقهي امامانو خپل فقهي مسایل
د قریشو په عربي لهجه بیان او اسلامي امت ته وړاندې
کړې دي. [2]

---

(۱) تاریخ ادب عربي، ص ۱۰۵ - ۱۳۰، مصنف: استاذ حسن زیات مصري ادیب.

(۲) تاریخ تمدن اسلام وعرب ص ۵۴۷، مصنف: ډاکتر ګوستاولوبون فرانسوي.

# فارسي ژبه

په فارسي ژبه کې هم ډېرې مختلفې لهجې دي چې لويې او مهمې لهجې يې په لاندې ډول دي:

(۱) **دري:** دري د افغانستان له اصلي ژبو څخه ده چې د افغانستان مرکزي سيمو لکه کابل، پروان، پنجشير او د بدخشان، تخار او هرات ولايت ځينې اوسېدونکي پرې خبرې کوي. خو په هره سيمه کې بېله بېله لهجه لري.

(۲) **هزاره گي:** دا هم د افغانستان د مرکزي سيمې د هزاره جاتو په برخو لکه باميان، لعل، پنجاب، غلمين او نورو برخو کې ويونکي لري او د کابل ښار کې هم هزاره گان پرې خبرې کوي. آن تر دې لکه څرنگه چې په دري ژبه ليکنې، کتابونه او آثار ليکل شوي دي، په هزاره گي لهجه هم ليکنې شته، خو د دري ژبې په اندول کم دي. دا ځکه چې دري لهجه د افغانستان درباري ژبه ده، په عمومي توگه اخبار، مجلې، جريدې او کتابونه پرې ليکل شوي او خپاره شوي دي او د افغانستان د فارسي په گردو لهجو کې دري خوږه، فصيحه روانه او له کړکيچ څخه پاکه ده.

(۳) اُرګوني لهجه: د افغانستان په فارسي لهجو کې تر ټولو کمه کېڅنه لهجه ده، لیکنې برېښي نه دي شوي.

(٤) ګردېزي لهجه: دغه لهجه صرف په ګردېز پورې محدوده ده. له پښتو او فارسي څخه ترکیب شوې لهجه ده. په دغه لهجه څه ناڅه پوهنې لیکنې موجودې دي، خو مروجي او عامي نه دي.

(۵) لارخاوي لهجه: په افغانستان کې د فارسي (دري) دریمه ستره او عمومي لهجه لارخاوي لهجه ده، چې د افغانستان په شمالي ولایاتو لکه بغلان، کندز او تخار کې ویل کېږي.

(٦) ګردي لهجه: د هرات ولایت د غوریانو په سیمه کې خبرې پرې کېږي، مګر لیکنې په دري ژبه او لهجه کوي.

(۷) تاجکي لهجه: د فارسي دغه لهجه د مرکزي آسیا د مشهور هېواد تاجکستان ژبه ده. امکان لري دغه لهجه د دغه هېواد په بېلا بېلو برخو کې نورې فرعي ورې اولوې لهجې هم ولري. افغانستان ته له دغه هېواد څخه راغلي مهاجرین هم په همدغه لهجه خبرې کوي خو د افغانستان د دري ژبې په لهجو کې چندان اعتبار نه ده کړي.

## (۸) ایرانۍ فارسي:

د ایران پخوانۍ نوم فارس دی، نو ځکه یې د هېواد ژبه هم فارسي نومېږي. او مجوسي مذهب هم په همدغه نوم شهرت لري. د ایران فارسي ژبه د افغانستان له (دری) او تاجکستان له تاجکي فارسي لهجو سره زیات توپیر لري. ایرانیانو خپلې فارسي ته له نورو فارسي ویونکو څخه زیات علمي او فرهنګي خدمتونه کړي او ډېره ترقي یې کړې ده.

د یادونې وړ ده چې د ایران په بېلا بېلو سیمو کې هم د فارسي ژبې بېلابېلې لهجې موجودې دي.

(۹) **مغولي لهجه:** د ایران له فارسي څخه د مغولو فارسي لهجه تاجکي فارسي او د افغانستان دری ژبې ته ډېره نږدې ده. د ایران فارسي د افغانستان شمال لوېدیځ ولایتونه لکه هرات، فراه او بادغیس له خپلې اغېزې لاندې راوستي دي.

دغه راز په افغانستان کې د فارسي نورې ورې غټې لهجې هم شته لکه زیباکي، اشکاشمی، شغناني، میمنګي او داسې نورې، ما هاند وکړ چې د فارسي د لهجو په اړوند کوم أخذ لیک (مأخذ) پیدا کړم، مګر لاس ته رانغي. دغه پورتني خبرې مې په ټولې له خپلو معلوماتو څخه لیکلي. بنا یې لږ و ډېر نیمګړتیاوې هم ولري.

# (۳) پښتو ژبه

پښتو ژبه دلغوي زېرمې له مخې دومره زاړه
او بډای ژبه ده چې په اوسني عصر کې له عربي ژبې
څخه وروسته دویم مقام لري. دغه راز که په
اوسني عصر کې یوازې هغه پښتانه وشمېرل شي چې
په نورو بشري اقوامو کې نه دي جذب شوي
او خپله پښتو ژبه وايي، بنايي د دنیا له گردو بشري
قومونو څخه يې شمېره زیاته وي. ځکه دنړۍ پر
مخ بنايي داسې هېواد نه وي چې هلته هم دا اوس
پښتانه کډن مېشته نه وي.

دلته نه دساري په توگه صرف هغه پښتانه قبایل
اوښې په لنډېز سره ذکر کوم چې د انسابو څېړونکو
او پلټونکو په خپلو لیکنو او څېړنو کې یاد کړي دي،
تر څو درنو لوستونکو ته دا جوته شي چې په نړۍ کې
هم دا اوس یا د مخه د بشري ژبو د هرې ژبې په قبیلوي
لحاظ مجموعي شمېر دري سوه زره دی.

دغه راز په دغه څېړنه کې یوازې د هغو پښتني قبایلو

یا د وته کیږي چې له قیس ع عبدالرشید رضی الله عنه څخه وروسته د هغه له نسل څخه پښتانه خواره شوي دي .

قیس عبدالرشید په ۸ هجری کال (۶۲۹ ع) د افغانستان له غور یا کسي غره څخه حجاز ته رهي شو او بیا مدینې منورې ته په رسیدو د خاتم النبین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حضور ته وړاندې شو ، ایمان یې راوړو او بیا حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یوښتنه ورڅخه وکړه چې نوم دې څه دی ؟ هغه ورته وویل ، قیس . حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل له نن څخه وروسته ستا نوم قیس عبدالرشید شو . چې تراوسه په همدغه نوم یادیږي . په همدغه سفر کې قیس عبدالرشید د مکې مکرمې په فتحه کې برخه اخیستې وه او په دغه فتحه کښې یې خپله پښتني میړانه ښودلې وه . رسول الله صلی الله علیه وسلم ورڅخه زیات خوښ شوی و او د بطل لقب یې ورېه ایښی وچه د اتل او پهلوان په معنا دی چه بیا وروسته پټن شو . ځکه چې هغه زمانه کښې په افغانستان کښې وګړي له عربي ژبه دود سره روږدي نه وو او نه یې تلفظ پرې کولی شو او بیا کله چې دده اولاده په حکومت کولو کې ترهنده ورسیده هغوی له پټن څخه پټهان جوړکړه

قیس عبد الرشید په ۴۱ هـ (له ۶۶۲ م کال سره سم) په
کسي غره کې وفات شو او هورې دفن کړای شو. (۱)
لنډه دا چې اوسنې ټولې پښتنې قبیلې دی له
قیس عبد الرشید څخه را په دې خوا دي او ټول دهغه له
توکمه څخه دی. داچې له هغه پخوا پښتانه وو او له نوموړي
تو یا ن څخه د مخه هم وو که نه، دهغوی په اړوند هیڅ راته هم
معلومات نشته، یو ازې الله تعالیٰ ته علم دی. زه چې دلته
د پښتو ژبې ویونکو لهجې لیکم هغه له قیس عبدالرشید څخه
را په دې خوا دی. او صرف د پښتو ژبې سترې لهجې ذکر
کوم چې هغه په لاندې ډول دي:

## ۱- کندهاري لهجه:

د پښتو ژبې دغه لهجه
په پښتنو توکه د افغانستان په لویدیځو پنځو ولایتونو،
کوټه او د افغانستان په نورو مرکزي او شمالي ولایتونو
کې په فرعي توګه ویل کېږي.
د دغې لهجې ویونکي: بارکزی، اسحاق زبي، الکوزي
نورزي، بړیڅ، پوپلزي او درین د اولادې ټول غټ پښتانه
قاموله دي، چې د پنځه سوه په شا و خوا کې فرعي لهجې ورڅخه

---

(۱) د پښتو قبیلې شجرې، ص ۸، میراجان سیال، تاریخ مرصع، د
افضل خان خټک، تاریخ خورشید جهان.

وتلې دي .

د پښتو ژبې کندهارۍ لهجه خورا خوږه ده . کاکړۍ لهجه هم د دغې لهجې لويه څانګه ده . په دغې پښتو لهجه په افغانستان کښې په سلګونو کتابونه چاپ شوي دي .

دا لهجه له فصاحت ، بلاغت او سلاست څخه ډکه لهجه ده د پښتو کندهارۍ لهجه د عربي ژبې په پرتله له فارسي څخه زياته اغېزمنه شوې ده چې لاملې يې ايران سره ګاونډيتوب دی . په دغه لهجه کې تايمني لهجه هم شامله ده .

## منځوزې لهجه :

د پښتو ژبې دغه لهجه په دوه برخو ويشلې شوې ده . چې لومړۍ لهجه يې په ښستېزه توګه دافغانستان په جنوبي لوېديځو ولايا تو ، غزني ، زابل او پکتيکا کې ويل کيږي او د پښتنو غټه قامونه ، لکه : هوتک ، اندړ ، خروټي ، سهاک ، تره کي ، چې بياپه دوي کې هم مختلفې لهجې دي ، خو په ډېر لږ بدلون سره . يوازې تره کي شېږ ښځوس لهجې لري ، اندړ ۲۵ سهاک دولس ، خروټي څلويښت او هوتک ۷۹ لهجې لري . ليکلي آثار يې لږ دي .

دويمه غټه لهجه يې د افغانستان په مرکزي ولايت لوګر او د پکتيا ولايت دګرديز ختيځ ته ترميرزه کې پورې ، د کابل ولايت په لوېديځ اولسوالۍ پغمان کې ، د ميدان وردګ ولايت

په میدان کښې او د ننګرهار ولایت د رودا تو او حصارک په ولسوالیو کې ویل کېږي . د افغانستان په شمالي ولایاتو، کندز، بلخ او تخار په ولایتونو کې هم دغه لهجه په ځینو ځایونو کې ویل کېږي . همدارنګه د بغلان او سمنګانو په ولایتونو کې او په کویټه او کشمیر کې هم ویونکي لري، خو شمېر یې ډېر لږ وي.

د متوزه پښتو ژبې لهجې ویونکي عمده قامونه دا دي :
احمدزي، ستانیزي، الوزي، دولت زي، لودیان، دوتاني، نیازي، سرواني، مشواڼي، چې بیا هریو په دوی کې په لسګونو وړې سیمه ایزې لهجې لري، چې په مجموعي توګه یې شمېره (۳۹) لهجې ښودل شوې دي .

## کرلاڼي لهجه :

د پښتو ژبې دغه لهجه هم د ژبدود په لحاظ په پنځېر ډول په دوو لویو ځانګو ویشلې شوې ده، چې یوه د افغانستان په جنوبي سیمو کې ده او بله یې په ختیځه سیمه کې ده او دغه دواړه لهجې زښت ډېر ویونکي لري، چې دا دی د هرې لهجې سترسترقامونه یې دلته وړاندې کېږي .

### په جنوبي لهجه کې :

په جنوبي لهجه کې خبرې کوونکي

پښتانه قاموته دادي: منګل، ځدران، ګوربز، صبري سودک، خمکني، ځاځي، مقبل، توریان، اپریدي، پړي، ختک، بنوځي، شیتک، وزیر، مسود، بنګښ، تني، دوړ.

بیا یو اړي په وزیرو کې (۳۰۰) لهجې دي(۱) همدغه راز په پورتنیو قامونو کې هر یو له (۶۰) څخه تر (۱۵۰) پورې کوچنۍ کوچنۍ سیمه ایزې لهجې لري چې د تقلو یادول ددې اثر له اندازې څخه بهر دي.

## یادونه:

دافغانستان د پښتو ادب او تاریخ نامتو محقق میراجان سیال په خپل کتاب «د پښتنو قبیلو شجرې» کې لیکلي دي، چې وردک هم له کرلاڼي قبایلو څخه دي، او دا خبره غلطه ده چې وردک سیدان دي.(۲)

لوکه د نوموړي محقق له وینا سره سم وردک هم په کرلاڼي قبایلو کې شامل شي، نو بیا د دوی لهجه هم مسود وته دېره نږدې ده او پکار دي چې په پورتنیو قبیلو کې وشمېرل شي. که څه هم د وردګو مسکن د کابل په جنوب لویدیځه سیمه کې دی. وردک هم د لهجې په لحاظ

---

(۱) پښتانه د تاریخ په رڼا کې، سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل، ۱۰۹۸-۱۱۰۱ مخونه

(۲) د پښتنو قبیلو شجرې، ص ۲۸۵.

درې قامونه دي: میرخېل، مایار، نوري.

## دویمه څانګه:

دکرلاڼي پښتو ژبې لهجې دغه څانګه هم ډېر ویونکي لري چې دکابل له کوه صافي څخه د پېښور له ایبټ آباد پورې خواره واره پراته دي. دغه اقوام په لاندې ډول ذکرکولی شي:

مومند، مامونډ، صافي، شینواری، خوګیاڼي، رحمت، مروت، یوسفزي، اتمان زي، ترنګزی، دلزاک، بابړ، منډړ، خلیل، داوُدزي.

په دغو قومونو کې: مومند، شینواري او صافي دننګرهار، لغمان، کنړ او دکاپیسا ولایت په تګاو کې اوسېږي. دغه راز مومند او شینواري د پښتونخوا په لواړګي، پېښور، باجوړ جندول کې استوګنه لري. خوګیاڼي د ننګرهار ولایت د تورغر په سیمه، اتمانزي د پېښور په چارسده کې او ترنګزي په شبقدر کې اوسېږي. دلزاک هم په پېښور کې اوسېږي. مروت د ډېره اسماعیل خان او سرائې نورنګ په پراخه سیمه کې استوګنه لري. یوسفزي په بنیر، سوات او دیر کې اوسي چې کابو د افغانستان د درې سترو ولایتونو په اندول حُمکه کې اوسېږي، چې ښاغلی ظفر کاکاخېل په خپل ا ترا پښتانه د تاریخ په رڼا " کې یوسفزي (۵٦) ورې لویې قبیلې ښودلې دي.

چې په بېلو بېلو سيمه ايزو لهجو خبرې کوي .

خليل او داؤد زي په پېښور کې خواره واره پراته دي لنډه دا چې ظفر کاکاخېل د پښتنو اوسنۍ ټولې قبيلې (۳۹۸) شودلې دي ، مګر په حقيقت کې ښايي د دې دوه چنده وي . ځکه چې نومورې ليکوال صرف د پښتنو موجودې قبيلې کته ګورې کړې دی ، چه د لهجو بدلون او اختلاف پکې يو بنځيزه خبره ده . البته د دې خبرې يادونه ضروري ده چې د پښتنو د لويو بېلا بېلو اقوامو د لهجو اختلاف يوله بله ښتيز دي ، مګر د هرې قبيلې د بېلا بېلو ورو ورو قومونو لهجوي اختلاف معمولي او فرعي بڼه لري .

ظفر کاکاخېل صاحب په پښتانه د تاريخ په رڼا کښې د پښتنو قبيلو مجموعي شمېره داسې د لبندي (کته ګورۍ) کړې ده :

الف : سړبنې قبايل : يوسل پنځه ( ۱۰۵ )

ب : غورغښتي قبايل : پنځه نوي ( ۹۵ )

ج : بيټني قبايل : پنځه ويشت ( ۲۵ )

د : متوزي (غلجي او لودي) قبايل : دوه پنځوس (۵۲)

هـ : کرلاڼي قبايل : يوسل اته ويشت ( ۱۲۸ ) (۱)

چې مجموعي شمېره يې (٤٠٥) کېږي . او لکه چې د مخه مو يادونه وکړه چې د کاکاخېل صاحب دغه احصائيه سرسري ده او په حقيقت کې که سمه شمېرنه وشي دغه شمېر ښايي څلور چنده شي .

---

(۱) پښتانه د تاريخ په رڼا کې ، ۱۰۰۸ - ۱۰۰۹ مخونه .

# د بشري نړۍ

## نورې ژبې

د بشري نړۍ نورې ژبې لکه: ترکي، آزري، اردو، جاوايي، بلوڅي، روسي، انګرېزي، فرانسوي، بربري، چينايي او داسې نورې پرزګونو ژبې چې هره يوه يې په سلګونو لويې او وړې لهجې لري. برسېره پر دې پخوانۍ له منځه تللې بشري ژبې، لکه: سوميري، عکادي، فنيقي، بابلي، سرياني آرامي، آريايي، اسوري، کلداني، عبراني او داسې نورې چې اصلي شمېر يې د ژبو او ژبو پوهنې په پيداکوونکي الله تعالیٰ ته معلوم دی. هر يوې زيات شمېر لهجې درلودلې، نو ځکه ژبپوهانو ويلي دي چې د ژبو دوړو لهجو په لحاظ مجموعي شمېر دري سوه زره (۳۰۰۰۰۰) دی. دا د هغو ژبو شمېره ده چې تر اوسه پورې ويل شوې دي. او هغه ژبې چې ژبپوهانو د هغوی په اړوند هيڅ يادونه نه ده کړې په دغه شمېره کې داخلې کړای شوې نه دي. ځکه چې په دنيا کې داسې لويې وچې هم شتون لري موجودې وې چې تر اوسه پورې کشف کړای شوې نه وې.

# دځوځوماځوځو ژبه

دبشري تو کم یوه ستر ونډه چې الله تعالی یې په قرآنکریم کې ذکرکړې دی او د "یأجوج او مأجوج" په نوم یې یا دکړي، دنوح علیه السلام د دریم ځوی (یافس) اولاده او ذوذات دی. او هغه دومره ډېر دي چې الله تعالی په یاجوج ماجوج سره نومولي دي. او په عربي ژبه دوی کې یاجوج او ماجوج معناګڼه ګونه او ډېر والي لامله دیوبل په سرختل دي (۱).

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه په خپل روایت کړي حدیث کې ویلي دي: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دیاجوج ماجوج په هکله پوښتنه وکړه، او داسې یې راته وفرمایل:

یَأْجُوجُ وَ مَأْجُوجُ أُمَّتَانِ كُلُّ أُمَّةٍ أَرْبَعمِائَةَ أَلْفِ أُمَّةٍ «كُلُّ أُمَّةٍ لَا يَعْلَمُ عَدَدَهَا إِلَّا اللهُ، لَا يَمُوتُ

(۱) تفسیر قرطبی، ج ٦، ۳۸ مخ.

الرَّجُلِ مِنْهُمْ حَتّٰى يُوْلَدَ لَهُ أَلْفُ ذَكَرٍ مِّنْ صُلْبِهِ كُلُّهُمْ قَدْ حَمَلَ السِّلَاحَ ، قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! صِفْهُمْ لَنَا . قَالَ : « هُمْ ثَلَاثَةُ أَصْنَافٍ : صِنْفٌ مِّنْهُمْ أَمْثَالُ الْأَرْزِ ، وَصِنْفٌ عَرْضُهُ وَطُوْلُهُ سَوَاءٌ نَحْوًا مِّنَ الذِّرَاعِ ، وَصِنْفٌ يَفْتَرِشُ أُذُنَهُ وَيَلْتَحِفُ بِالْأُخْرٰى ، لَا يَمُرُّوْنَ بِفِيْلٍ وَلَا وَحْشٍ وَلَا خِنْزِيْرٍ إِلَّا أَكَلُوْهُ ، وَيَأْكُلُوْنَ مَنْ مَاتَ مِنْهُمْ مقدمتهم بالشام و ساقتهم بخراسان يَشْرِبُوْنَ أَنْهَارَ الشَّرْقِ وَبُحَيْرَةَ طَبْرِيَةَ فَيَمْنَعُهُمُ اللهُ مِنْ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ وَبَيْتِ الْمَقْدِسِ » (۱)

ترجمه : ياجوج او ماجوج دوه بيلا بيل امتونه دي چې هر يو امت يې څلورسوه زره (څلورلکه) امتونه دي . د هر يو امت وګړي يې دومره ډېر دي چې له الله تعالی پرته بل چا ته يې شمېره نه ده معلومه . له هغوی څخه يو نارینه هم ترهغه

---

(۱) تفسير قرطبي ، ج ٦ ، ص ٣٨ - ٣٩ .

پوري نه مري چې يوزر زامن وزېږ وي له خپلې نطفې او ملیا څخه اوبیا هر یو دوسلې چلولوجوګه شي . ورته وویل شو : ای دالله تعالیٰ رسوله ! مونږ ته دهغوی تفصیلی تعارف وکړه . ویې فرمایل :

یاجوج ماجوج داجسامو په لحاظ درې ډوله دي:
یو ډول یې دأرز ونې په شان دګک دنګ دی (دغه ونه په شام کې ده.، جګوالی یې یو سل شل وازه ذراع دی »
دویم ډول یې یوه وانده اوږ دوالی اویوه وازه پلنوالی لري ، پلنوالی او اوږدوالی یې سره برابر دی . دریم ډول یې دومره لوی لوی غوږونه لري چې دځملا ستو په مهال کې یې یو غوږ له ځان نه لاندې توشک کړي او بل غوږ بړستن کړي اوپکې ځملي . دیاجوج او ماجوج خوراک هاتیان ، وحشي ځناور اوخنځیران دی . اوله هغوی څخه چې کوم یو مړشي نو دهغوی ژوندي یې مړي وخوري . کله چې هغوی دقیامت له قیام څخه دمخه راووځي نو قدم به یې په شام کې وي او پنډه به یې په خراسان کې وي . دختیځ او طبریه سمندرګی اوبه به په څښلو سره تمامې کړی . الله تعالیٰ به یې مکې مکرمې ، مدینې منورې اوبیت المقدس ته له تللو څخه وژغوري .

ددغه مبارک حدیث له ذکرکولو څخه زما مطلب دادی چې دبشري نړۍ له ګردو څخه لویه ونده دیافس له اولادې څخه

ځوځي ماځوځي دي. او دغه دواړه امتونه هر یو څلور لکه
واړه امتونه (قبیلې) لري. یعنی څلور لکه امتونه د یاجوج دي
او څلور لکه د ماځوځو دي، چې په مجموعي توګه یې شمیر
اته لکه امتونه کیږي. او هر یو امت به ژموږ په څیر بیلې بیلې
ژبې او لهجې لري، چې په دې توګه زموږ د ژبپوهانو تحقیق
څومره نیمګړی او له حقیقت څخه لرې دی، چې وایي بشري
توکم تراوسه پورې صرف په اوه ویشت زره ژبو خبرې
کړې دي. او دوی د بشریت دغه اته لکه ژبې بېخي له نظره
غور ځولې دي. بلکې هیڅ ورته فکرونه دي شوي. او موږ
دالایې وهو چې انسان د ساینس او علم وروستي پړاوته رسیدلی
دی. په داسې حال کې چې د بشري ژبو په هکله زموږ د
څیړونکو معلومات څومره کم دي. بلکې که زه ووایم چې د
ژبو په اړوند تراوسه پورې چې څومره ریسرچ شوی دی
نظر په پورتني حدیث بېخي ابتدایي دی. او سبالي د
ځوځو ماځوځو د دغو اتو لکو ژبو په هکله له ماڅخه د مخه
چا یادونه هم نه وي کړې. الله تعالی دې وکړي چې زما
له دغې یادونې څخه وروسته د بشري ژبو څیړونکي د ځوځو
ماځوځو د اته سوه زره ژبو په هکله هم غور وکړي، ځکه چې هغوی
هم بشري توکم دی. او هم پر دې باندې اعتراف وکړي چې د دوی
معلومات د ژبو په اړوند بېخي ابتدایي او ناقص دي.

ښالي ځينې وګړي د ياجوج ماجوج له بوره تني مختلف تخليق ، بلکې د هغوی له موجوديت څخه انکار وکړي، ځکه چې هغوی صرف پر حسياتو باورلري، عقلي دلايل او سفسطي نظريات قبلوي او پر فلسفه باورلري ، معنويات، نقلي علوم او نقلي دلايل، حقايق او لاهوتي حقيقتو نه نه قبلوي . مګر هغه څوک چې له مادي سره سره معنا هم قبلوي ، پر انساني فلسفي باندې الهی حکمت ته ترجيح ورکوي ، هغوی له شک او ترديد څخه پرته د ياجوج او ماجوج دوو امتونو په اړوند په قرآني آياتونو او ذکرشوی حديث باندې ايمان لري او د څوڅو ما څوڅو موجوديت حق ګڼي .

او کله چې د دغو دوو بشري امتونو چې هم يوې ځلورته لکه امتونه لري ، چې ټول انته لکه کېږي ، د هغوی انته لکه ژبو او لهجو باندې هم باور کوي ، ځکه چې هغوی هم بنيادمان دی ، زمونږ په څېر ټولې بشري اړتياوې، عقل او شعور، افهام او تفهيم او خپل منځي د يالوګ او مفاهمي ته اړتيا لري چې د اړتيا له کمه دود څخه پرته ممکن نه د هم او نه بيا د بشريت اطلاق پرې کېدلی شي .

نو نظر په دغو دلايلو او حقايقو زما په فکر دا خبره سمه نه ده چې بشري ژبې صرف هغه ژبې وګڼل شي چې د "سام او حام"

اولادي پری غړ بڼي ، بلکې د"یافس" د اولادی او ذوذات

دژبو یا دوڼه هم ضروري ده. البته دومره باید وویل شي

چې دهغوی د ژبو او کړ دودونو په اړوند موږ علم نه لرو،

د هغوی خبرې کول او غړېدل هم داسې دي لکه چې موږ

پېړی غړ بړ و اوکه زموږ له ژبدو د څخه دهغوی ژبدو د

مختلف دی ، مګر دا یو منلی شوی حقیقت دی چې د یافس

نوره اولاده لکه ترک او صقالبه همدا اوس له موږ "سامي"

توکم سره او همدا راز له "حامي" توکم سره چې د افریقا اصلي

هستوګني دی ، راکړه ورکړه ، خبرې اترې او معاملات لري ،

ژبد ودونه لري اوکړدودونه (حروف) یې همدغه عربي الفباء

دي چې زموږ دژبو دي. نو یاجوج او ماجوج به هم شایي

دخپل ژبدود له پاره همدغه کړدود لري. او دا په نبوي

حدیث سره ثابته ده چې "ترک" هم د"یافس" اولاده ده ، لکه چې

ابو هریره رضی الله عنه له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت

کړی دی، فرمایلي یې دي.

«وُلِدَ لِنُوحٍ سام وحام ويافث ، فَوَلَدَ سام الْعَرَبَ

وَفَارِسَ ، وَالرُّومَ وَالْخَيْرُ فِيهِمْ، وَوَلَدَ يَافِثُ يَأْجُوجَ

وَمَأْجُوجَ وَالتُّرْكَ وَالصَّقَالِبَةَ وَلَا خَيْرَ فِيهِمْ، وَوَلَدَ

حام القبطُ والبربرَ والسّودَان » (۱)

ترجمه: حضرت نوح علیه السلام دری زامون لرل چی سام، حام او یافث نومیدل. د سام اولاده عرب، فارس او روم دي او په دغو هلوکي د پرخیر دی، د یافث اولاده څوځي ماځوځي، ترک او صقالیه دی او په دوی کي خیر نشته او د حام اولاده قبطیان، بربریان او حبش دی.

نظر په دغه نبوي حدیث دا ثابته شوه چي ترک، صقالبه یاجوج او ماجوج د یافث اولاده ده او دا هم هرچاته معلومه ده چي صقالبه او ترک خپل خپل ژبي درلودونه لري، تهذیبونه او ثقافتونه او تمدنونه لري. څوځي ماځوځي به هم ورو لری، ځکه دا خوګډلای نه شي چي دیو پلار اولاد ځیني ژبي ولري او ځیني یې و نه لري. هغه هم چي بشري توکم او بنیا دم وي.

په همدي وجه د څوځو ماځوځو ته لکه ژبي او لهجي هم بشری ژبي او لهجي دي، چي څېړونکو دهغو بحثي یادونه نه ده کړی. چي دا په ادبي ډګر کي زما په نظر خورا لویه نقیصه ده.

(۱) قرطبي تفسیر، ٦ جلد، ۳۸ مخ.

**صَقَالبه:** د صقالبه ؤ په هکله په معجم الوسیط کې ویل شوي دي:

الصَّقَالِبَةُ: جِيلٌ مِّنَ النَّاسِ كَانَتْ مَسَاكِنُهُمْ إِلَى الشَّمَالِ مِنْ بِلَادِ الْبُلْغَار وَانْتَشَرُوا الْآنَ فِي كَثِيرٍ مِّنْ شَرْقِيّ أَوْرُبَةَ وَهُمُ الْمُسَمُّونَ الْآنَ بِالسَّلَافِ"[1]

ترجمه: صقالبه د انسانانو نسل دی چې د بلغاریا په شمال کې هستوګني دي او اوس د ختیځې اروپا په ډېرو هیوادونو کې تیت شوي دي او اوسنی نوم یې سلاف دی.

---

(۱) معجم الوسیط، ج، ص ۵۱۹.

# عربي
# د کړدو ژبو سردار

په نړۍ کې له یوولس سوه زرو (یوولس لکو) ژبو
چې درې سوه زره (درې لکه) د "سامي" او "حامي" اقوامو
دي او اته سوه زره (اته لکه) د یافس قومونو، څلور
سوه زره د "ګوګ" او څلور لکه د "ماګوګ" دی
ما چې څومره غور او فکر پکې وکړ، د دې کړد و
ژبو بنسټ او چورلیځ عربي ژبه ده.

الله تعالی عربي ژبې ته لومړی فضیلت داورکړی
چې د کړدو بشري ژبو پیل یې د عربي ژبې په پیدا یښت
سره کړی دی، لکه چې له ابوذر غفاري رضی الله عنه څخه په
مروي حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي
پر حضرت آدم علیه السلام باندې الله تعالیٰ (۲۱) صحیفې نازلې
کړې وې چې په یوه صحیفه کې یوازې د عربي ژبې (۲۸)
حروف هیجاء یعني: ا، ب، ث، ج تر ی، پوري
نوري وو او بیا آدم علیه السلام ته د دغو حروفو د تلفظ

ترکیب اولیکلو تعلیم جبرائیل علیه السلام ورکړی و.

همدغه‌لا مل دی چې نن په بشري نړۍ کښې چې څومره ژبې دی، یا د مخه تېرې شوې دي، دګرد و الفباء همدغه د عربې ژبې الفباء دي اوکوم شکلی بدلون چې پکې سنکاري هغه دبشري ملتونو دتلفظاتو له امله دی او یا که په حروفو کې کوم زیاتوالی راغلی دی هغه صرف دګړدودونو په وزله هماغه دعربې له حروفو څخه جوړکړای شوی دی. دمثال په توګه په پښتوژبه کې پخپله دال « د » هم دی، دیوی کوندېې په زیاتولو سره ډال « ډ » هم دی. س (سین) هم دی او پرسین باندې په لاندې باندې ټکي په ایښودلوسره « ښ » (ښین) هم دی. همدغه راز (ک-ګ)، (ر-ړ) اوداسې نور په فارسي کې ز-ژ، په انګریزي، روسي، هندي، چینایي جاپاني، جاوالي، عبراني، سُریاني او نور و ګرد و ژبو کې که دقت وکړای شي همدغه عربي توري اوعربي الفاظ دی چې په ځینو ژبوکې سرچپه کړای شوي اوځینو ژبوکې معمولي زیاتوالی اویا کموالی په کې کړای شوی دی. چې له همدې کبله زه وایم چې عربي ژبه د نوروګردو ژبو سرداره ده، زما په فکر رښتیا او حق به می ویلی وي او دا هله ثابتېږي چې لوستونکي لږ څه ورته ځیر شي.

# آیا ژبه ټولنیزه پدیده ده؟!

داسلام د مقدس دین مخالفین ژبه یوه ټولنیزه (اجتماعي) پدیده ګڼي، چې د انظریه بېخي بې اساسه، واهي او غلطه ده، ځکه چې ټولې ژبې د کائناتو خالق او مالک پیدا کړي دي. الله تعالیٰ د خپل ابدي کلام قرآن کریم د روم په سورت کې فرمايلي دي:

"وَمِنْ اٰيَاتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ واخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَ اَلْوَانِكُمْ ط اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَاتٍ لِّلْعَالِمِيْنَ ٥"

(۲۲ آیت، ۳۰ سورت، ۲۱ سپاره)

او د الله تعالیٰ د قدرت له ځینو نښو څخه د آسمانونو او ځمکې پیدا کول دي او اختلاف د ژبو ستاسې دی او بل اختلاف د بڼې او رنګونو ستاسې دی، بېشکه په دغه اختلاف کې خامخا دالله تعالیٰ د قدرت ډېرې نښې دي د پوهانو له پاره.

امام قرطبي رحمة الله علیه ددغه مبارک آیت په تفسیر کې لیکلي دي:

"اللسان فی الفم، وفیه اختلاف اللغات: من العربية والعجمية والتركية والرومية. واختلاف الالوان فی الصور: من البياض والسواد والحمرة، فلا تكاد ترى أحداً الا وانت تفرق بينه وبين الاخر. وليس هذه الاشياء من فعل النطفة ولا من فعل الابوين، فلا بدّ من فاعل، فعُلِمَ ان الفاعل هو الله تعالیٰ، فهذا من ادلّ دليل على المدبر الباری ء" (۱)

ترجمه: ژبه په خوله کې ده، او په خبرو اترو کې يې اختلاف دی، لکه عربي عجمي، ترکي، رومي .... او په ښکلو کې د ښو اختلاف سپين والی، تور والی، سور والی، نو ته هر يو بنيادم چې وينې هرومرو يې له بل سره توپير موجود دی، او دغه کر د څيزونو نه خود نطفې کار دی او نه د مور او پلار. او خامخا دغه کرد يو صانع لري او هغه الله تعالیٰ دی. او دغه امور پيا ورې دليل دی د خالق پر تدبير باندې.

هو! مومن ايمان لري چې ژبه ټولنيزه پديده نه ده بلکې الله تعالیٰ پيدا کړې ده او بيا دغه ټولې ژبې يې حضرت بابا آدم عليه السلام ته په هغه وخت کې ښو دلې وې چې هغه ايکسي يوازې و او بل يو انسان هم ورسره نه ؤ، لکه چې الله تعالیٰ په خپل ابدي کتاب قرآن کريم کې فرمايلي دي:

«وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلَائِكَةِ فَقَالَ أَنْبِئُونِي بِأَسْمَاءِ هَٰؤُلَاءِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ۝» (۲)

او الله تعالیٰ ادم (عليه السلام) ته ټول نومونه و ښودل، بيا يې هغه ټول پرښتو ته وړاندې کړل او ورته ويې فرمايل: تاسي ماته په نومونو د دغو شيانو خبر را کړئ که تاسې رښتيا ويونکي ياست.

---

(۱) قرطبي تفسير، ج ۷، جزء ١٤، ۱۳ مخ (۲) بقره سورت - لومړی سپاره، ۳۱ آيت.

# د ژبو د پیدایښت تاریخ

د ژبو د پیدایښت د تاریخ په اړوند د غربي څیړونکو او کمونستانو د انظرو غلط او له اسلامي تاریخي څیړنو خلاف دي چه وایي : د ژبو د پیدایښت تاریخ څلور زره کلن دی. حکه چه په دې هکله نظر دا دی چې ژبې د وه مره لړغوني څومره چې انسان لرغوني دي. د بشري ژبو پیدایښت د حضرت آدم سره جوخت شوي دي.

امام قرطبي رحمة الله علیه په خپل تفسیر کې د «وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ» په تفسیر کې وایي دي :

« أَلصحیح أن، اوَّلَ مَنْ تَكَلَّمَ باللغات كلها من البشر، آدم علیه السلام والقرآن یشهد له، قال الله تعالیٰ : « وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا » واللغات كلها اسماء فهی داخلة تحته وبهذا جاءت السنة »[1]

یعنې صحیح خبره دا ده چې په کره وبشري ژبو له آدم څخه تر قیامته پوري چه انساني پرتکې او ملتونه پرې غږېږي، دلو مړي ځل له پاره پر هغو کره و باندې آدم علیه السلام خبرې کړي دي. او پر دې باندې پخپله قرآنکریم شاهدي کوي او فرمایي : الله تعالیٰ آدم (علیه السلام) ته ټول نومونه وښودل. او ژبې هم ټول نومونه دي. لکه پښتو، عربي، سوریاني، سومیري، آشوري، عکادي، ارښکي، دري (فارسي) ترکي، روسي، انګریزي، اردو، عبراني او..... ) نو ژبې په نومونو کې داخل دي او په همدې باندې نبوي حدیث هم مروي دی.

دغه راز امام ابن عطیه اندلسي متوفی ۵۴٦هـ په خپل تفسیر المحرر الوجیز کې د پورتني آیت په تفسیر کې وایي دي :

---

(۱) تفسیر قرطبي، ج ۱، ص ۱۹۵

« بل عَلَّمَهُ الأَسْمَاء بكل لغة تكلمت بها ذريته » (۱)

بلکې حضرت آدم علیه السلام ته الله تعالیٰ په کرد و هغو ژبو د ښوونو ورښودل چې دده اولاده پرې ګړېږي.

همدارنګه د پنځمی هجري پېړۍ نامتو مفسر، قاضي او ادیب امام ماوردی متوفی ۴۵۰هـ په خپل تفسیر اَلنُّکَتَ والعُیون کې د پورتني مبارک آیت په تفسیر کې داسې لیکلي دي:

« أنه علمه بجميع اللغات، وعلّمها آدمُ وَلَدَهُ فلما تفرقوا تكلم كل قوم منهم بلسان إستسهلوهُ منها وأُلفُوهُ » (۲)

په تحقیق سره آدم علیه السلام ته الله تعالی د کردو ژبو ښودنه وکړه او بیا حضرت آدم علیه السلام خپلی اولادې ته دژبو زده کړه ورکړه، مګر کله چې هغوی په زمکه کې خواره او سره تیت شول، نو هر یو قام له هغوی څخه په هاغه ژبه غږېده چې ورته اسانه وه او مینه یې ورسره وه او نورې ژبې یې هېرې کړې.

له پورتني تحقیق څخه یو خو دا ثابته او جوته شوه چې ژبې اجتماعي او یو لتیزې پدیدې نه دی، بلکې الله تعالیٰ پیدا کړې دي او بیا ټولې یې لومړی انسان حضرت آدم علیه السلام ته هغه مهال ښودلې دي چې هلته ټولنه نه وه، بلکې یوازې حضرت آدم ؤ او بس.

دویمه خبره دا ورڅخه ثابته شوه چې پښتو پنځه زره کلن

---

(۱) المحرر الوجیز، ج ۱، ص ۱۲۰ . (۲) النکت والعیون، ج ۱، ص ۹۹.

تاریخ نه لري ، بلکې په کلونو کلونو هغه تاریخ لري چې نورې هغه
اووه نده ڼ ژبې يې لري ، چې تراوسه ویلی شوي دی چې بیا
نورې يې دخپلو قاموسونو له منځه تللو سره فنا شوې دی او اوس
په انساني نړۍ کې صرف نهه سوه ژبې داسې دي چې اوس
هم ژوندۍ دي او خبرې پرې کولی شي او خپل خپل ثقافتونه
لري ، اويا نورې هغه ژبې چې له دې څخه وروسته په مینځنه را
درومي او قومونه به يې راوړي .

مطلب : دا چې د ژبو د پیدایښت تاریخ له اسلامي اندود سره
سم ایکي یو دی ، دابیله خبره ده چې قامونه يې په مختلفو ادوارو
کې مینځ ته راغلی دي اويا به راځي او په کار يې اچوي .

دریمه خبره د روم د سورت له ۲۲ مبارک آیت څخه دا ثابته شوه چې ټولې
ژبې الله تعالی پیدا کړې دي او دالله تعالی دبشپړ ځواک او قدرت له
دلیلونو څخه دي چې له هغې امله د اسلامي شریعت له حکم سره سم هیڅ یوې ژبې
ته هم سپک کتل روا نه دي ، ملنډې او مسخرې کول ورپورې حرام
دي ، ځکه چې د غه ډول عمل دالله تعالی په تخلیق پورې خندا
کول او دهغه سپکاوی کتل کېږي چې هیڅ یو مؤمن به يې جرأت ونه کړي .
بلکې ټولو ژبو ته پکار دی چې په یومیځانی نظر وکړی شي ، مگر هغه
ژبه چې په شرعي نص سره يې فضیلت ثابت وي ، لکه عربي ژبه چې خاتم
النبیین حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم يې فضیلت بیان فرمایلی
دی او دهغې زده کړه يې دهر مؤمن له پاره واجب کړې ده ، نو پکار دی
چې پرکردو ژبو افضله وکڼلی شي .

# د ژبو ویش څرنګه وکړای شو؟

دا خبره خو ثابته شوه چې ژبې ټولې دالله تعالیٰ خلقت دی او انسان یکې هیڅ ایجادي ونډه نه لري . او دا هم ثابته شوه چې د ټولو بشري ژبو زده کړه الله تعالیٰ دلومړي ځل له پاره آدم علیه السلام ته ورکړې وه. اوس دا پوښتنه پیدا کیږي چې د دغو ژبو ویش څرنګه مینځ ته راغی؟ .

په دې باره کې اسلامي تاریخ پوهانو او ژبپوهانو لکه امام رازی متوفی ۶۰۶ه په خپل تفسیر کبیر کې امام سیوطي متوفی ۹۱۱ه په خپل کتاب المزهر کی ویلی دي :

« حضرت آدم علیه السلام دکردو بشري ژبو له پاره یو دفتر جوړ کړی و چې په هغه کې یې لیکلې وې . بیا ځکې له دې چې وفات شي هره ژبه یې د ختو په یوې ځانګړې تختې ولیکله او بیا یې هغه ټولې تختې د اور په بټۍ کې پخې کړې او بیا یې په یوه خونه کې خوندي وساتلې او کله چې نړیوال توپان راغی نو د ژبو هغه تختې یې یوې او بلې خواته یوړې او سره خورې ورې

يې کړې . د توپان له پاى ته رسېدو وروسته د مغو ژبو
دهرې ژبې تخته چې چاته لاس ته ورغله او ميندہ يې کړه ،
نو د ميند ونکي او دهغه د نسل هماغه ژبه شوه .

د هندوستان نامتو مفسر، محدث ، مؤرخ ، سياست پوه ،
ممتاز فقيه او اديب علامه نواب صديق حسن خان بهوپالى
متوفى ١٣٠٧هـ په خپل کتاب « ابجد العلوم » کې په دې هکله دامام
سيوطي قول او دامام رازى څرګندونه داسې نقل کړې ده :

« إنّ آدم عليه الصلاة والسلام كان عالمًا بجميع اللغات
لقوله سبحانه وتعالى « وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا » وروى
أن آدم عليه السلام وضع كتابًا فى انواع الألسن والأقلام
قبل موته، ثم كتبها فى الطين ثم طبخه. فلما أصاب الارض
الغرق وجد كل قوم كتابًا فكتبوه من خطه، فاصاب اسمعيل عليه
السلام الكتاب العربي. وكان ذلك من معجزاب آدم عليه السلام » [۱]

په تحقيق سره آدم عليه السلام پرګردو بشري ژبو پوه او
عالم وُ ، ځکه چې الله تعالى فرمايلى دي : « او الله تعالىٰ آدم ته
د ټولو ژبو ښوونه وکړه . او روايت شوى دى چې آدم عليه السلام
د ژبو د ټولو نو دهرې ژبې ليکدڅانګړى دفتر او قلم کېښودلى و،
او بيا له خپل وفات څخه دمخه يې دخټو پرتختيو باندې وليکل
او بيا يې هاغه تختې د اور په بټۍ کې پخې کړې ، بيا کله چې ځمکه

(۱) ابجد العلوم ، ج ۱ ، ص ۱۶۳ .

په توپان کې دوبه شوه او هاغه دژبو تختې یې حورې ورې کړې ، اوکله چې نړیوال توپان پای ته ورسېده، نو هرچا ته چې دهرې ژبې تخته لاس ته ورغله له هماغې څخه یې لیکل، لوستل او غږېدل پیل کړل. اسمعیل علیه السلام ته دعربي ژبې تخته په لاس ورغله ، نو دهغه او دهغه داولادې ژبه عربي شوه، ځکه چې د عربي ژبې له هماغه تختې څخه یې لیک لوست پیل کړل.

او دغه دګڼ دو مختلفو ژبو خوربدل او په بشري نړۍ کې دودکېدل او ترویجېدل د حضرت آدم علیه السلام له معجزاتو څخه و.

داوه دژبو د ویش او خپرېدلو کیسه چې امام سیوطي په خپل کتاب کې په بشپړه تفصیل سره ذکر او بیان کړې ده ، او آدم علیه السلام داهرڅه دالله تعالیٰ له هدایت سره سم کړي وو.

# د ليک د پيدايښت تاريخ

ځيني د اسلام له مقدس دين نه ناخبره په دې عقيده دي دي چې د ليک تاريخ تر پينځو زرو کلونو لرغونی نه دی. دوی ښايي د غيراسلامي فلسفيانو پر آثار و باندې په تکيه کولو سره دا خبره کوي، حال دا چې حقيقت داسې نه دی.

لکه چې د مخه يې يادونه وشوه په بشري نړۍ کې د ليک علم پر ځمکه باندې د لومړی بشر حضرت آدم عليه السلام له ميشت کېدو سره سم مينځ ته راغلی دی، چې په لکونو کلونه پرې تېر شوی دی او زما د دې خبرې شاهد د الله تعالیٰ فرمان دی چې په قرآن کريم کې يې فرمايلي دي:

« اِقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ۝ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۝ عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ۝ » (۱)

ولوله، حال دا چې ستا رب لوی کريم دی، هغه رب چې ښوولی

---

(۱) د علق سورت - ۳-۴-۵ آيا تونه، ۹۶ سورت، ۳۰ سپاره.

يې دی خط انسان ته په قلم سره - ښوونه يې کړې ده انسان
ته د هغو شيانو چې دی پخوا له ښودلو څخه پرې نه پوهېده.
امام قرطبی رحمة الله علیه په خپل تفسیر کې د دغه مبارک
آيات په تفسير کې ليکلي دي :
« قال کعب الاحبار فيمن علمه بالقلم : أنه ادم عليه السلام ؛
لانه اول من كتب » (۱)
کعب الاحبار ويلي دی : په دغه آيت کې په قلم سره د خط
ښوولی شوي انسان څخه مراد حضرت ادم علیه السلام دی، ځکه چې
هغه لومړنی څوک و چې په قلم سره يې ليکل کړي دي .
او بیا له آدم علیه السلام څخه وروسته دهغه په ذوذات کې حضرت
ادریس علیه السلام و چې په قلم يې ليکل کړي دي .
که څه هم ځينو اسلامي تاريخ پوهانو او ژبپوهانو ويلي دي چې آدم
علیه السلام په خپله ګوته ليکل کول او حضرت ادریس علیه السلام
چې د آدم علیه السلام لمسی او د شیث علیه السلام زوی و، د
لومړي ځل له پاره يې په قلم ليکل کړي دي ؛ لکه چې امام ابن قتيبه
دينوری متوفی ۲۷٦هـ / ۸۸۹م په خپل کتاب « المعارف » کې د الاوائل تر
عنوان لاندې ليکلي دي :
« قال وهب بن منبه : اول من خط بالقلم ادريس عليه السلام » (۲)
وهب بن منبه ويلی دي : حضرت ادریس علیه السلام لومړی

---

(۱) تفسیر قرطبي ، لسم ټوک ، ۸۲ مخ . (۲) المعارف ، ۲٤۰ مخ .

هغه څوک وُ چې په قلم یې لیکل کړي دي .

دغه راز حافظ ابن کثیر رحمة الله علیه متوفی ۷۷٤ هـ په خپل مشهور کتاب " البدایه والنهایه " کې لیکلي دي :

« وذکر ابن اسحاق أنه اول من خط بالقلم » (۱)

ابن اسحاق ویلي دي : حضرت ادریس علیه السلام لومړنی هغه څوک وُ چې په قلم یې لیک کړی و .

او همدغه خبره مشهور مفسر امام ضحاک هم په خپل تفسیر کې کړې ده .

په هر صورت د دغو دواړو دولو اقوالو ترمینځ مطابقت پوهانو داسې کړی دی چې حضرت آدم علیه السلام لومړنی هغه څوک وُ چې په قلم یې لیک کړی و او بیا له هغه نه وروسته د هغه په اولاده کې حضرت ادریس لومړنی هغه څوک وُ چې د خپل نیکه په څېر یې په قلم لیکل کول او نور و ته یې هم ورښودل .

په دې توګه ویلي شو چې د غیر اسلامي نظر او عقیدې خاوندانو دا خبره غلطه او بې اساسه ده چې د لیک تاریخ تر پنځو زرو کلونو زیات نه دی . حقیقت دا دی چې د لیک تاریخ په بشریت کې د پېر لرغونی دی په لکونو کلونه پرې تېر شوي او له حضرت آدم علیه السلام سره جوخت مینځ ته راغلی دی .

---

(۱) البدایه والنهایه ، ج ۱ ، ص ۹۹ .

# حضرت آدم علیه السلام لومړنی نثر او نظم لیکونکی و



ځینې اسلام د ښمنه، طاغوت او الحادي نظر خاوندان په دې ګروهمن دي چې لومړنی انسان وحشي، له تهذیب، تمدن او ثقافت څخه بې برخې و، ځکه خبرې یې زده نه وې او په هیڅ نه پوهېده (استغفرالله) وګوری څومره دېوچې او غلطې مفکورې خاوندان دي. په انبیاء علیه السلام یې د وحشي توب فتوی لګولې ده.

حقیقت دا دی چې لومړنی انسان وحشي او غیر مهذب نه بلکې مثقف، مهذب او متمدن و. پر هغه (آدم علیه السلام) الله تعالی یو ویشت[1] صحیفې نازل کړې وې، چې حلال، حرام او دعباداتو او حقوقو الهی هدایات ورکې وو، لکه چې علامه ابن اثیر متوفی سنه ٦٣٠ هـ / ١٢٣٤ م په خپل کتاب الکامل فی التاریخ کې ویلي دي:

«وکان آدم مع ما اعطاه الله تعالی من ملک الارض نبیا رسولاً إلی وُلدِهِ، وَأنزَلَ اللهُ عَلَیهِ إحدی وَعِشرِینَ صَحِیفَةً کتبَهَا آدم بِیَدِهِ عَلَّمَهُ إیاها جبرائیل» (۱)

---

(۱) الکامل فی التاریخ، ج ۱، ص ۵۸.

او حضرت آدم علیه السلام سربیره پردې باندې چې الله تعالیٰ د حکم پاچاهي ورکړې وه ، هاغه نبي او رسول هم وُ چې خپل اولاد ته لیږل شوی و او الله تعالیٰ یوویشت پاڼې پرې نازل کړې وې ، چې حضرت جبرائیل ورته تلاوت کولې او حضرت آدم علیه السلام په خپل مبارک لاس سره لیکلې.

نو حضرت آدم علیه السلام د خپل کهول ټول غړي پر اسلامي آدابو او انساني سجایاوو ګانهلی وو او راتلونکی نسل ته یې د تهذیب الاخلاق ، دیانت او تقویٰ بنسټ ایښی وُ. حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :

„ وکان ممن انزل علیه تحریم المیتة والدم ولحم الخنزیر"

او پر آدم علیه السلام چې کوم نواهي او اوامر نازل شوي وو ، د هغو له جملې څخه د مردار شوي څاروي د غوښې خوړلو تحریم ، د بهېدونکې وینې خوړلو تحریم او د خنزیر د خوړلو حرام والی و.

(دا حدیث امام احمد په خپل مسند ج ۵ ، ص ۲۶۵ کې د ابو امامه په سند روایت کړی دی )

هغوی وحشي او بې تهذیبه نه وو ، هغوی ملکوتي ممتاز صفتونه لرل او د انسانیت د تعمیر له پاره یې د ملاک او چورلیځ کردار اداء کړی دی . دا سې کردار چې اوسنی انسان یې عشرعشیر ته نه رسېږي .

حضرت آدم علیه السلام بې ادبي ډګر کې نه پوازې دا چې بنیا د مونږ ته د تنزلیکني میراث پرېښودلی دی ، بلکه د شعر بنسټ هم

آدم علیه السلام خپلو بچیانو ته ښودلی دی ، لکه چې نامتو اسلامي مؤرخ مسعودی متوفی ۳۴٦هـ په خپل کتاب « مُرُوجُ الذَّهَبْ » کې لیکلی دي :

«کله چې قابیل خپل ورور هابیل په ناحقه وواژه او حضرت آدم علیه السلام خبر شو نو د خپل مقتول زوی په مرگ خورا زیات خواشینی شو او د هغه په ویر کې یې دا مرثیه وویله :

تَغَيَّرَتِ البِلادُ ومن عَلَيْهَا * فَوَجْهُ الأَرْضِ مُغْبَرٌّ قَبِيْحُ
تَغَيَّرَ كُلُّ ذِي لَوْنٍ وَطَعْمٍ * وَقَلَّ بَشَاشَةُ الْوَجهِ الصَّبِيحُ
وبُدِّل أَهلُهَا خَمْطًا واثْلاً * بِجَنَّاتٍ من الفردوس فَيحُ
وجاورنا عدوٌّ ليس ينسى * لَعِينٌ لا يموتُ فنستريحُ
وقَتَلَ قائنُ هابيل ظلماً * فوا أسفا على الوجه المليحُ
فمالي لا أجود بسكب دمع * وهابيل تضمنهُ الضريحُ
أرى طول الحياة عَلَيَّ غمًّا * وَمَا أنَا مِنْ حَيَاتِي مُسْتَرِيحُ

ترجمه :

(۱) ښارونه او هغه چې په دغو ودانیو کې دی ، ټول له خپل اصلي حالت څخه بدلون کړی دی او بدل شوی دی ، چې له هغې امله د ځمکې مخ گردجن او ناوړه شوی دی .

(۲) هر رنگ لرونکی او خوند لرونکی څیز بدل شوی دی ، او د ځلانده مخ رونتیا کمه شوې ده .

(۳) هستوگنو یې په بې مزې ترخو او ترېو غز په میوو سره بدل کړل ، د خوږو او ترسکونو میوو ډک او کړن باغونه .

(۴) او له مونږ سره زمونږ دښمن (شیطان) ملګری شوی دی، چې هیڅکله یې نه هیرېږي زمونږ عداوت او زمونږ دغه رټلی شوی او شړلی شوی اندېوال مرګېږی هم نه چې ورڅخه هوسا شو.

(۵) او قابیل په ناحقه سره هابیل وژلی دی. نو د پېره خواشیني او خفګان دی په بېلتون دهغه خوږ او نوراني مخ بانديې.

(۶) نو په ما باندې څه شوي دی چې د اوښکو څخه په ولو بهولو سره هم هابیل میندلی نه شم، په داسې حال کې چې هغه قبر په خپله غېږه کې ټینګ نیولی دی.

(۷) اوس خو زه د خپل ژوند او د دوالی د روند غم ګنم او زه له خپل دغه ژوند څخه سوکاله او هوسا نه یم.»

د حضرت آدم علیه السلام په دغه مرثیوی شعر کې د بد یع او بیان فصاحت او بلاغت څومره صنعتونه او فنون راوړل شوي چې د اوس په مختللي شاعر او ادیب له پاره د چورلیځ حیثیت لري.

# تمـــدن او عمـران:

الله تعالیٰ انسان په ځمکه کې د دې له پاره پیدا کړی او میشت کړی دی چې ځمکه ودانه کړي او د الله تعالیٰ د هغو حکمتو نو مظهر وګرځېږي د کومو د تکمیل او بشپړتیا له پاره یې چې ځمکه او انسان پیدا کړی دي، لکه چې الله تعالیٰ په دې اړوند د هود په سورت کې فرمایلی دي:

«هُوَ أَنْشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَ

كُمْ فِيهَا ...»[1]

همدغه الله تعالیٰ تاسې له ځمکې څخه پیدا کړي یاست او تاسې یې ددې له پاره پکې میشته کړي یاست چې دغه ځمکه ودانه کړئ.

امام ماوردي په خپل تفسیر کې ددغه مبارک آیت په تفسیر کې ویلي دي:

وَٱسْتَعْمَرَكُمْ: أي أمركم بعمارة ما تحتاجون اليه من بناء مساكن وغرس أشجار » [2]

یعنې تاسې ته الله تعالیٰ امر کړی دی په جوړولو د هغو شیزونو په ځمکه کې چې اړتیا ورته لرئ، لکه د تعمیرونو جوړول دونو بوټي کرل.

او مصطفیٰ مراغي یکې زیاته کړې ده:

« ای جعلکم عماراً لها فقد کانو ازرّاعا وصناعا وبنائین » [3]

یعنې الله تعالیٰ تاسې د ځمکې معماران ګرځولي یاست له همدې کبله لومړني انسانان بزګران، صنعت کاران او د تعمیرونو جوړولو لومړني انجنیران وو.

امام قرطبي په خپل تفسیر کې زیاته کړې ده:

---

(1) د هود سورت، ٦١ آیت، ۱۱ سورت. (2) النکت والعیون، ج۲، ص ٤٧٩

(3) تفسیر مراغي، ج ۴، جز ۱۲، ص ۵۳.

« وحفر الانهار » (۱)

او د نهرونو به جوړولو او کیندلو کې یې درته امر کړی دی.

او حافظ ابن کثیر لیکلي دي:

«ای جعلکم عمارًا تعمّرونها وتستغلونها» (۲)

یعني تاسي یې د ځمکې و دانوونکی او مستعمره کوونکی ګرځولي یاست.

نو د الله تعالیٰ له دغه پوره تنې حکم سره سم حضرت آدم علیه السلام د بیت الله شریف تعمیر جوړ کړ او د ځمکې پر مخ یې د تمدن لومړی تاداو کیښود، لکه چې امام قرطبی رحمة الله علیه په خپل تفسیر کې ویلي دي:

«عن ابن عباس قال: أهبط آدم من الجنة الى الارض قال لهُ: یاآدم! اذهب فابن لی بیتًا وطُف به واذْكُرني عِنْدهُ كَمَا رَأَيتَ الْمَلَائكة تَصْنعُ حَوْلَ عرشی. فأقبل آدم يَتَخَطّىٰ وطُوِيَتْ لَهُ الْأَرْضُ، وقُبضت له المفازةُ فلا يقعُ قَدَمه على شيء من الارض الاّصار عُمرانًا حتى انتهى الى موضع البيت الحرام، وان جبريل عليه السلام ضرب بجناحيه الارض فا برزعن اس ثابت على الأرض السابعة السُّفلى، وقذفت إليه الملائكة

---

(۱) قرطبي، ج ۵، جزء ۲، ص ۳۸

(۲) ابن کثیر تفسیر، ج ۲، ص ۴۵۰.

بالصّخر فما يطيق الصخرةَ مِنها ثلاثُون رجلاً، وأنّه بنا من خمسة أجبُلٍ كما ذكرنَا.»(۱)

د قرآن کریم له ترجمان حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چې ویلی یې دي: کله چې آدم علیه السلام له جنت څخه ځمکې ته را ښکته کړای شو، نو الله تعالیٰ ورته وفرمایل: ای آدمه! څه لاړ شه او زما د عبادت له پاره کور جوړ کړه او بیا طواف ورڅخه وکړه، او زما داسې ذکر یې کوه لکه څرنګ چې تا پرښتې ولیدې چې زما د عرش په چارچاپېر یې کوي.

آدم علیه السلام د الله تعالیٰ له امر سره سم له سراندیب څخه حجاز ته سفر پیل کړ. ځمکه ورته لنډه کړای شوه او بیدیا ور ته قابو کړای شوه. او د ځمکې په هر ځای کې به یې چې قدم ښښوده په راتلونکې کې هلته د انسانانو کلي او ښارونه جوړ کړای شول.

تر دې چې د بیت الله جوړولو مقام ته ورسېد. حضرت جبرئیل ورته وویل: همدغه مقام د بیت الله جوړولو دی. بیا حضرت جبرئیل د تادا وُ کیندلو له پاره خپل د واړه وزرونه پر ځمکه ووهل چې د اوومې طبقې کلکه ونړه ورسره جوته شوه. بیا حضرت آدم علیه السلام د بیت الله په جوړولو بریدو کړ او پرېښتو د مکې له غرونو څخه د برې ورته راوړلې، چې هره یوه تیګه دومره غټه وه چې د برش تنه سړي یې هم داوچتولو څواک نه لري. او حضرت آدم-

---

(۱) تفسیر قرطبی، ج ۱، جزء ۲، ص ۸۳

عليه السلام د مکي د ښځو غرونو له د برو څخه د بيت الحرام تعمير جوړ کړ، لکه چې مونږ د مخه ورڅخه يادونه وکړه "

د جغرافيه پوهنې نامتو عالم ياقوت حموي متوفى ٦٢٦هـ په خپل کتاب معجم البلدان څلورم ټوک ٤٦٣ - ٤٦٧ مخونو کې د بيت الله په جوړيدلو خورا تفصيلي څيړنه کړې ده، چې د لوستلو وړ ده.

لنډه دا چې حضرت آدم عليه السلام د الله تعالى په حکم د انساني تمدن پيل د بيت الحرام په جوړولو سره کړی دی او په مکه کې د انسان له پلوه د الومړني کور و چې جوړ کړای شو، لکه چې الله تعالى د آل عمران په سورت کې فرمايلي دي:

"إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِّلْعَالَمِينَ ۝ "(1)

بېشکه په مکه کې لومړنی کور چې جوړ کړای شوی دی له کردو څخه پخوا خلکو او انسانانو ته هدا کوونکی دی چې په مکه کې دی، حال دا چې برکت ناک او لاره ښوونکی دی خلکو ته د سعادت او تمدن.

حافظ ابن کثير رحمة الله عليه په خپل تفسير کې د دغه مبارک آيت تفسير کې ويلي دي:

"انه اول بيت وضع على وجه الأرض مطلقاً "(2)

يعنې د مکې پر مخ د انسان په لاس له ټولو څخه لومړنی کور

---

(1) د آل عمران سورت، ٩٦ آيت . (2) تفسير ابن کثير، ج ١، ص ٣٨٣

بیت الله جوړ کړی شوی دی.

امام ماوردی او امام قرطبي دواړو له قتاده او مجاهد رحمه الله
روایت کړی دی چې هغوی دواړو ویلی دي:

لم یوضع قبله بیت »(۱)

یعنی له بیت الله رحمه الله د مخه یو کوم انسانانو جوړ کړی نه دی.

دغه راز امام بیهقی متوفی ۴۵۸هـ په خپل کتاب دلائل النبوة
کې د کعبې د جوړېدو په اړوند له حضرت عبدالله ابن عمرو
بن العاص رحمه الله مرفوعاً حدیث روایت کړی دی چې په هغه کې
رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

« بعث الله جبریل إلی آدم وحواء فأمرهما ببناء الکعبة
فبناه آدم ثم أمر بالطواف به وقیل له: انت أول الناس وهذا
أول بیت وضع للناس » (۲)

الله تعالی حضرت آدم او بی بی حواء علیهما السلام ته حضرت جبریل
ورولیږه او هغوی دواړو ته یې حکم وکړ چې کعبه جوړه کړي،
نو هغه جوړه کړه، او کله چې د بیت الله تعمیر بشپړ شو، نو حکم
یې ورته وکړ چې طواف ورته وکړی. او حضرت آدم علیه السلام ته
وویل شول: ته د ګردو انسانانو لومړی انسان یې او دغه کور
د ځمکې پر مخ د خلکو له پاره له ټولو څخه لومړی کور دی.

---

(۱) تفسیر النکت والعیون ج ۱، ص ۴۱۰ - قرطبي، ج ۲، ص ۸۸.

(۲) د ابن کثیر تفسیر په حواله، ج ۱، ص ۳۸۳.

اوبیا له حضرت آدم علیه السلام څخه وروسته د دهٔ زامنو
د ده له هدایت سره سم ډېر کورونه، کلی، جوماتونه او معبدونه
جوړ کړي وو. حضرت آدم علیه السلام په خپل دغه کار سره
داسلامي تمدن پیروانو ته خورا غوره سنت پرېښود، اوهغه
دا کله چې مسلمانان په کومه سیمه کې کلي او یا ښار جوړوي، هلته
ته یکار دی چې پیلامه یې د جوماتونو په جوړولو وکړي. چې د
همدغه سنت په اتباع کله چې خاتم النبیین حضرت محمد صلی الله
علیه وسلم له مکې څخه مدینې منورې ته هجرت وکړ، نولومړی
یې جومات جوړ کړ، چې دا داسلامي تمدن یوځانګړی او
امتیازی تشخص دی چې له غیراسلامي مدنیتونو څخه یې جلا
کړی او ممتاز کړی دی:
نو له دې پورته یادونو څخه څرګندېږي چې لومړنی انسان
وحشي نه بلکې دانساني تمدن بنسټ ایښودونکی و.

## صنایع:

د غیراسلامي او الحادی نظر دخاوندانو دا نظر بېخي بې بنیاده
دی چې د کرورونو کلونو پخوانی انسان وحشی و. بلکې هماغه
پخوانی لومړنی انسانان وو چې د انساني تمدن، ثقافت او تهذیب
بنسټ یې کېښودلی و. دالهامي او سماوی علوموسره سره یې د
اکتسابي علومو او فنونو بنیاد هم ایښی و، د مختلفو صناعتونو
او حرفتونو مینځته راتلل او پیلامه هم دهغوی له پلوه شوې ده
اوبیا په خاص ډول انبیاء کرامو دالله تعالی له هدایت او تعلیم سره سم

تول هغه صنایع په خپلو بختورو لاسونو، روحاني او جسماني
هاند سره ایجاد کړي دي چې انساني توکم په هره زمانه او هره سیمه
کې د خپل سوکاله او هوسا ژوند تېرولو له پاره اړتیا ورته لري. همغه
لومړني انسانان په سر کې یې انبیاء دا وسنیوګړدو هغو صنعتونو ته ګوته
دی چې د نن انسانان ورباندې وياړ پرې کوي. په برم، پرتم او اکوبمبال
ژوند پرې کوي چې د بېلګې په توګه د خپلې مدعی د اثبات له پاره
یې درلوډ لوستونکو ته یو څو ذکر کوم:
د انسانیت لومړنی پلار - آدم علیه السلام - سربېره پردې چې د
ادب دفن او تعمیراتو دفن بنسټ اېښودونکی و، د بزګرۍ او
کروندې د حرفت بنسټ هم هغه اېښودلی و. حضرت آدم علیه السلام
لومړنی انسان ؤ چې د الله تعالیٰ له هدایت سره سم یې د غنمو ګېډه
شیرلې وه، یوې یې کرلې وه، کښت یې کړلی و، بیا یې لو کړی
او ریبدلی و، غوبل کړي یې وو او غله یې درمند کړې، بیا
یې وړه او ډوډۍ یې ورڅخه پخه کړې وه، لکه چې امام قرطبي
په خپل تفسیر کې ددې مبارک آیت په تفسیر کې لیکلي دي:
« وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّن بَأْسِكُمْ
فَهَلْ أَنتُمْ شَاكِرُونَ ۝ » (۱)
او موږ داؤد (علیه السلام) ته د زغرې جوړول ښوولي وو.
ددې له پاره چې دغه زغرې تاسې د جنګ له ضرر څخه وساتي

---

(۱) د انبیاء سورت، ۸۰ آیت، ۲۱ سورت، ۱۷ سپاره.

نو آیا تاسې د الله تعالیٰ د دغه او نورو نعمتونو شکر کوونکي یاست.

امام قرطبي رحمة الله علیه لیکلي دي:

« هذه الآیة أصل في إتخاذ الصنائع والاسباب، وهو قول اهل العقول والالباب، لا قول الجهلة الأغبیاء القائلین بان ذالک انما شرع للضعفاء، فالسبب سنة الله في خلقه فمن طعن في ذالک فقد طعن في الكتاب والسنة .... وقد اخبر الله تعالیٰ عن نبیه داؤد علیه السلام انه کان یصنع الدروع، وکان ایضا یصنع الخوص، وکان یأکل من عمل یده، وکان آدم حراثا، ونوح نجاراً و طالوت دباغاً وقیل سقاءً ... » (۱)

ترجمه: د غه پورتنۍ مبارک آیات د صنعتونو په ایجادکې او د اسبابونو په لټولو کې شرعي دلیل دی. او همدغه تقاضا د عقلونو هم ده. عقلمندان او هوښیاران همدغه نظر لري، نه هغه ناپوهه غبیان چې وایي: صنعتونه او کسبونه صرف د کمزورو او بې وزلانو له پاره دي. ددوی دا خبره ځکه غلطه ده چې کار او کسب په مخلوق کې د الله تعالیٰ سنت دی، نو هغه څوک چې پردې باندې نیونه کوی، هغوی پر قرآن کریم او نبوی سنتو اعتراض کوی. الله تعالی په دغه مبارک آیت کې خبر ورکړی دی چې حضرت

---

(۱) تفسیر قرطبي، ج ٦، ص ۲۱۲ - ۲۱۳.

داؤد علیه السلام به زغری جوړولې، همدارنګه د خوماو دنیالو نــو صنعت یې هم کاوه او د خپل لاس په کسب سره یې روزي ګټله او خوړله یې. او حضرت ادم علیه السلام بزګرو، او نوح علیه السلام ترکاڼ و او طالوت علیه السلام د چمنو د دباغت او آش کولــــو کارو بار کاوه.

مطلب دا چې حضرت آدم علیه السلام دلومړی ځل له پاره دکرهنې کسب مینځته راوړی دی او په فلسطین کې اوس هم هغه چینه موجوده ده چې حضرت آدم علیه السلام به خپل کښت ورڅخه خړوباوه او اوس هم د حضرت آدم علیه السلام د چینې په نوم یادېږي. دا ځکه چې یوقدسي حدیث کې الله تعالی د ځمکې د عمران حکم ورته کړی وُ او ورته فرمایلی یې وو:

«عمروا بلادی فعاش فیها عبادی»

زما ځمکه ودانه کړئ چې زما بندګان ژوندون پکې وکړي.

(٤) دغه راز حضرت آدم علیه السلام د مالدارۍ د حرفت هم تاداو کښودلی وچې بیا وروسته یې دکرهنې پر حرفت باندی قابیل وګوماره او د مالدارۍ د نده یې خپل بل زوی حضرت هابیل علیه السلام ته وسپارله چې هغوی ډېره ودوه ورکړه او ډېر وګړي یې پکې ورونزل.(٢)

(۵) د سیاسي نظام لومړنی بنسټ ایښودونکی هم حضرت آدم علیه السلام وُ، لکه چې نواب صدیق حسن خان ویلي دي: «والحدود والأحکام

---

(١) مبسوط، ج ٢٣. (٢) تفسیر قرطبي، ج ٣، جزء ٦، ص ٨٨.

ابتدأت من آدم » (۱)

د حدودو او احکامو حکومتی پیلامه حضرت آدم علیه السلام کړې وه، چې په دې توګه له نن څخه دری لکه کلونه د مخه حضرت آدم علیه السلام د تعلیمي نظام فرهنګی نظام، تمدني نظام، سیاسي نظام او اقتصادي نظام بنسټ ایښودونکی او په عملي ډګر کې پیل کوونکی و.

(۶) د ریاضی علم: دغه راز د ریاضي د علم او د شپې او د ورځې د ساعتونو د ویش او حساب تاداؤ هم حضرت آدم علیه السلام ایښود لی و(۲)

## حضرت ادریس علیه السلام:

له حضرت آدم علیه السلام څخه وروسته د نورو فنونو او صنعتونو بنسټ ایښودونکی حضرت ادریس علیه السلام و. نوموړی په مصر کې اوسېده، الله تعالیٰ دېرش صحیفې پرې نازلې کړې وې، لکه چې د ابوذر غفاری (جندب بن جناده) په مروي حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

« یا اباذر من الرُسُلِ اربعة سریانیّون: آدم وشیث و نوح وخنوخ (ادریس) وهو اول من خطّ بالقلم وانزل الله علیه ثلاثین صحیفة » (۳)

ای ابوذره! د دری سوه پنځلس رسولانو له جملې څخه څلور رسولان له سریانیانو څخه دی چې آدم، شیث، ادریس او نوح علیهم السلام دی.

---

(۱) ابجد العلوم، ج ۱، ص ۱٦۵. (۲) الکامل فی التاریخ، ج ۱ ص ۵۸.

(۳) الکامل فی التاریخ، ج ۱ ص ٦۵.

الله تعالیٰ پر حضرت ادریس علیه السلام د برش صحیفې نازلې کړې وې او مخه (له حضرت آدم څخه وروسته) لومړی هغه څوک وچې په قلم یې لیکل کړي دي.

حضرت ادریس علیه السلام په مصر کې د دغو علومو، فنونو او صنعتونو تا داو کېښودونکی او لومړی موجد و:

۱- خیاطي: مسعودی په مروج الذهب کې او ابن قتیبه دینوری په المعارف کې ویلی دي:

« وهو اول من دَرَزَ الدّروز، وخاط بالابرة، واُنزِلَ علیه ثلاثون صحیفة »(۱)

حضرت ادریس(ع)، له ټولو څخه لومړنی انسان وچې د درزي توب یعنی خیاطی صنعت یې ایجاد کړ او لومړنی انسان وُچې پرستن باندې یې کندل کړی دی، او پر حضرت ادریس باندې د برش صحیفې د الله تعالیٰ له پلوه نازلې کړای شوې وې.

(۲) د طب علم لومړی ایجاد د حضرت ادریس علیه السلام کړی دی.

(۳) د فلکیاتو او نجوم علم تاداو کېښودونکی هم ادریس علیه السلام وُ، لکه چې علامه نواب صدیق حسن خان ویلی دي:

« والشتهرعنه من العلوم مالم یشتهری عن غیره ولُقّبِ بهرمس الهرامسة والمثلث بالنعمة لأنه کان نبیًا، ملکًا حکیما، وجمیع العلوم

(۱) مروج الذهب، ج۱، ص۵۰.

التي ظهرت قبل الطوفان انما صدرت عنه في قول كثير من العلماء ، وهو هرمس الاول أعني ادريس بن يرد بن مهلايل بن انوش بن شيث ابن آدم عليه السلام المتمكن بصعيد مصر الاعلى وقالوا : إنه اول من تكلم في الاجرام العلوية والحركات النجومية واول من بنى الهياكل وعبد الله تعالى فيها ، و اول من تكلم في الطب ، وألف لأهل زمانه قصائد في البسائط والمركبات . وأنذر بالطوفان ورأى أنه افة سماوية تلحق الارض فخاف ذهاب العلم فبنى الأهرام التي في صعيد مصر الاعلى وصور فيها جميع الصناعات والألات ، ورسم صفات العلوم والكمالات حرصا على تخليدها » (١)

ترجمه: اوله حضرت ادريس عليه السلام څخه په بشري نړۍ کي هغه علوم خپاره شول چي له بل چا څخه مروج شوي نه وو. او حضرت ادريس عليه السلام د عالمانو په عالم سره او د پوهانو په پوه سره نومولی شوی دی او ستايلی شوی دی او ددرېو ګونو نعمتونو په خاوند سره نومولی شوی دی، ځکه چي حضرت ادريس عليه السلام نبي هم وُ، پاچا هم وُ او حکيم هم وُ. اوله طوفان څخه چي پخوا څومره علوم او فنون خپاره شوي وو نو ټول له ده څخه شايع شوي وو. او دا نظر د ډېرو علماوو دی.

او حضرت ادريس بن يرد بن مهلايل بن انوش بن شيث ابن آدم عليه السلام

---

(١) ابجد العلوم، ج ، ص ٣٦٤ ، ( په لنډيز سره)

لومړی حکیم و ، او حضرت ادریس لومړی هغه څوک وچې د فلکیاتو او ستوریو د حرکت په باره کې یې خبرې کړې دي. او هغه لومړی هغه څوک څې هیکلو نه یې جوړ کړي وو او په هغوی کې یې دالله تعالیٰ عبادت کاوه .

## آرشیف او آرټ :

حضرت ادریس علیه السلام د طب لومړنی تاداوُ ایښودنکی و او د خپل عصر انسانانو ته یې په مفرد اتو او مرکباتو کې قصیدې لیکلې وې او د نړیوال طوفان خبر یې ورکړی وُ او ویلې یې وو: د ایو آسمانی عذاب دی چې پر ځمکه به نازل کړای شي . نو هغه د علومو په ابته کېد لوو ویرېده او د هغه د باقي پاتې کېدوله پاره یې د علیا مصر په سیمه کې اهرامونه جوړ کړل او په هغوی کې یې د ټولو صناعتونو اوسامان آلاتو تصاویر وکښل ، علوم او هنرونه یې پکې رسم کړل د هغو د باقي پاتې کېدو په اسویلا نه تیا سره.

اوس نو باید د غیر اسلامي او الحادي مفکورې او نظر خاوندان فکر وکړي چې هغوی وحشي او غیر متمدن وو، لوکه د بشري تمدن او کلتوو لومړي بنسټ ایښنودنکي وو.

## (۳) نوح علیه السلام :

د غه راز د بابل د اسلامي تمدن بنسټ ایښودونکی، د اسلامي او انساني تهذیب او ثقافت لومړنی معمار دالله تعالیٰ رسول حضرت نوح علیه السلام و. حضرت نوح علیه السلام د بابل (په اوسنی عراق) د سوریا نیانو د بنوراسب له قبیلې څخه و، او په انسانانو کم کسی بنوراسب لومړنی هغه ټولنه وه چې د شیطان په لمسه یې د

دخپلو پنځو وفات شویو مشرانو او اولیاؤ وَدّ، یعوق، سُواع یَغُوث او نَسَر تصویرونه وکښل او د هغوی عبادت یې پیل کړ او د لومړي ځل له پاره یې په بشریت کې د شرک او بُت پرستۍ توحید دښمنه پروسه پیل کړه.

هماغه وُ چې د هغوی د اصلاح او سمون په تکل د هغوی له قوم څخه الله تعالیٰ نوح علیه السلام مبعوث کړ او نهه ویشت صحیفې یې پرې نازلې کړې چې شریعت یې و او د الومړنی رسول وُ چې شریعت ورته ورکړای شو. او هم لومړنی نبي وُ چې د شرک پرخلاف یې د توحید دعوت پیل کړی و. ځکه چې د بنوراسب له قبیلې څخه د مخه په بشریت کې د شرک بد مرغه مفکوره نه وه، او له دوی څخه رومبی لس انساني پیړۍ د اسلام پر توحیدي ګروهې کرمې وې.

حضرت نوح علیه السلام نهه نیم سوه کاله خپل قوم ته د اسلام د مقدس پنځیز دین د قبلولو او د شرک له طاغوتي فکر څخه توبه کولو ته دعوت ورکړ او د خپلې فرهنګي مبارزې په لاره کې د مشرکانو میرځمني ګواښونو، ربړونو او ځورولو له خپل یون څخه ستومانه او پښېمانه نه کړ او خپلې رسالتي دندې ته یې په خپل بې سیاله زغم، متانت او ثبات ادامه ورکړې وه. د قوم له ناخوالو او راز راز ماتورو سره سره مایوسه شوی نه و او په بشپړه میړانه یې د طاغوت د پلویانو په پېغمبرانه ځواک مقابله کوله.

حضرت نوح علیه السلام له دعوت سره سره دغه لاندې بشرې صناعتونه او فنون هم ایجاد کړي وو او د عراق د لرغوني تمدن پنسټ یې پرې ایښی و :

۱- ترکاڼي : حضرت نوح علیه السلام لومړنی څوک وُ چې د ترکاڼۍ او نجارۍ فن یې ایجاد کړی و او له خپل دغه کسب څخه یې د خپل ځان او خپل کهول اړتیاوې پوره کولې او الله تعالیٰ د ترکاڼۍ د کړ دو ځانګو علم او پوهه ورکړې وه .

(۲) د بېړۍ جوړولو فن : د بېړۍ جوړولو فن او صنعت هم حضرت نوح علیه السلام مینځته راوړی دی او الله تعالی د دغه صنعت تعلیم او هدایت ورکړی و ، لکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي :

« وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا » (۱)

او جوړه کړه ته بېړۍ زمونږ په لارښوونه ، څارنه او هدایت سره .

(۳) په سمندر کې بېړۍ چلول : دغه راز په سمندر کې سفر کول د بېړۍ چلولو فن هم حضرت نوح علیه السلام ایجاد کړی و او هغه لومړی هغه څوک و چې په سمندر کې یې د بېړۍ چلولو د فن پنسټ ایښی و دلی و ، او خپلو پیروانو ته یې دا تعلیم ورکړی و چې له طوفان څخه څرنګ ځان او بېړۍ ژغورنه وکړای شي ، له ډوبېدلو څخه کوم ژغورنده تدابیر ضروري دي .

---

(۱) د هود سورت ، ۳۷ آیت ، ۱۱ سورت ، ۱۲ سپاره .

## (٤) حضرت یوسف علیه السلام :

حضرت یوسف علیه السلام چې په لوغونې مصرکې هم پاچا و، هم نبي و، الله تعالیٰ د صنعتونو او فنونو لویه ونډه ورکړې وه، چې یو څو یې په لاندې ډول وړاندې کولی شي:

(۱) **دخوبونو د تعبیر علم :** الله تعالیٰ حضرت یوسف علیه السلام ته د خوبونو د تعبیر علم ورکړی و، لکه چې الله تعالیٰ د یوسف په سورت کې د هغه قول نقل کړی او فرمایلي یې دي:

«وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ ؕ قَالَ اَحَدُهُمَا اِنِّيْ اَرٰىنِيْ اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْ اَرٰىنِيْ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ؕ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ قَالَ لَا يَاْتِيْكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقٰنِهٖۤ اِلَّا نَبَّاْتُكُمَا بِتَاْوِيْلِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّاْتِيَكُمَا ؕ ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ ؕ اِنِّيْ تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝ »[1]

او له یوسف سره بندي ته دوه ځلمیان جېل ته، له هغو دواړو څخه یو ته یوسف علیه السلام ته وویل : ما خوب ولید چې د شرابو له پاره انګور نچوړوم ، او هاغه بل ورته وویل : ما خوب ولید چې پر سر خپل مې د ډوډۍ شکور بار کړی دی او مارغان له هغه ډوډۍ څخه خوري . ته مونږ ددې خوبونو په تعبیر خبر کړه . بېشکه مونږ تاله نیکو کارانو څخه وینو . یوسف علیه السلام ورته وویل :

---

(۱) د یوسف سورت، ۳۶-۳۷ آیاتونه ، ۱۲ سیپاره .

تاسي ته بهلا هغه دو ډېره راغلي نوي چې تاسې ته د ركولي شي (دجيل ځيره) مګر چې زه به تاسې ته ستاسې د خوب په تعبير خبر دركړم. مخكې د طعام له راتلو څخه تاسې ته، دا د خوب تعبيرله هغه علم څخه دی چې ما ته رب زما ښو دلی دی. بېشكه ما د هغو خلكو دين پرېښو دلی دی چې پر الله ايمان نه راوړي، حال دا چې دوی په آخرت هم دوی كافران دي.

امام قرطبي رحمة الله عليه د دغه آيت په تفسير كې ويلي دي:
« وبَيَّنَ أنَّ اللهَ خَصَّهُ بهذا العلم » (۱)
او حضرت يوسف عليه السلام دا جو ته كړه چې د خوبونو د تعبير علم خاص ده ته الله وركړی دی. او د دغه علم ښتې ايښودونكي يوازې همدی يعني حضرت يوسف عليه السلام دی.

(۲) **د معدنياتو علم** : الله تعالیٰ د حُكمی د معدنيا تو علم وركړی و.

(۳) **د حُكمې د سروې علم** : يوسف عليه السلام ته الله تعالیٰ د حُكمی د سروې علم هم عطاء كړی و او پر دې باندې يې هيده چې كومه ځمكه خوړه ده كښت كوی او كومه شوره ده كښت نه زرغونوي، كومه خوړه ځمكه كوم ډول فصل او په كوم موسم كې يې كوی. د غه راز الله تعالیٰ هغه ته د معادنو علم هم وركړی و او هغه به د حُكمې د خاورې او د غرونو د برو

(۱) قرطبي تفسير، ج ۵، ص ۱۲۵، جزء ۹.

له رنګ څخه معلوما وه . او دغه دواړه فنون یې د یوسف په سورت کې ذکر کړي او فرمایلي دي :

«قَالَ اجْعَلْنِي عَلَىٰ خَزَآئِنِ الْأَرْضِ ۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ ۝»[1]

یوسف د مصر پاچا ته وویل : ما د ځمکې د زېرمو وزیر وټاکه ، بېشکه چې زه یم ښه ساتونکی او ښه پوه یم .

(۴) **دکاغذ صنعت :** دېر داسې وګړي په اسلامي نړۍ کې هم میندل کېږي چې وایي دکاغذ ایجاد دلومړي ځل له پاره په چین کې شوی دی ، په داسې حال کې چې دا نظر غلط دی ، ځکه چې دکاغذ صنعت دلومړي ځل له پاره د الله تعالی نبي حضرت یوسف علیه السلام ایجاد او پیل کړی و ، او هغه لومړنی څوک ؤ چې له ټولو څخه لومړی یې پر کاغذ باندې لیکل کړي وو ، لکه چې د دریمې هجري پېړۍ نامتو مسلمان مؤرخ او ادیب ابن قتیبه دینوري په خپل کتاب المعارف کې لیکلي دي :

«و اول من عمل القراطیس یوسف النبي علیه السلام»[2]

اولومړی هغه څوک چې پر کاغذو یې لیکل کړي دي یوسف علیه السلام ؤ .

(۵) **داجتماعي اقتصاد فن :** یوسف علیه السلام لومړی هغه

---

(۱) د یوسف سورة ، ۵۵ آیت . (۲) المعارف ، ص ۲۴۱ .

څوک وچې د تولنیز اقتصا د بنسټ یې ایښی و.

(۲) دغلو دزېرمه کولو فن: حضرت یوسف علیه السلام دغلو ساتلو او زېرمه کولو فن هم ایجاد کړی و، په داسې طریقه او حکمت سره چې غله تر لسو کلونو پورې هم خرابه نه شي. او هغه داسې کله چې هغه د مصر د کرهنې او محدثونو وزیر وټاکل شو، نو د پېړۍ شاهي حکم یې په سرکاري لګښت ودانۍ کړې او هغې ورکولو او په پرله پسې توګه یې اووه کلونه کښتونه کړل او حکم یې وکړ چې د هرکال دارتیا ورغله دې مېده او تیاره کړای شي او باقي نوره دې په خیلووږو کې خوندي په بښبود لی شي او دغه ورنې دې په ځمکه کې دفن کړای شي. همداسې یې وکړل او کله چې اووه کلونه وروسته په مصر او دهغه په چاپېریال کې وچکالي او کاختي راغله چې اووه کلونه یې پرله پسې دوام وکړ، نو بیا یوسف علیه السلام چې په دغه مهال کې پاچا شوی هم و، حکم وکړ چې دغنمو زېرمه کړای شوی ورنې را وباسئ، مېده، غوبل او پاک یې کړئ او حکومتي زېرمه تونونه ورڅخه ډک کړئ. سرکاري نرخ او هرچا ته دغلې اندازه یې وټاکل او اعلان یې وکړ چې هرچا ته دې ورکول شي.

همداغه وُ چې د کاختۍ ځپلو سیمو، لکه فلسطین، روم، یونان او نورو لرې تبرو دې وکړو ټولو مصر ته مخه کړه او غلې به یې هرکال ورڅخه چېلولې، ترڅو چې اووه کلنه کاختي او وچکالي پای ته ورسېده. او الله تعالیٰ د مصر او دهغه دچاپېریال سیمې بیا سمسورې او آبادې کړې، چې په دې توګه حضرت یوسف علیه السلام په

خپله پېغمبرانه پوهه او تدبير سره کاختي قابو کړې وه.

## (۵) داؤد عليه السلام

حضرت داؤد عليه السلام ته هم الله تعالیٰ سياسي، اقتصادي او صنعتي پوهې عطاء کړې وې چې د مخه يې هم په ضمني توګه يادونه شوې وه او دادې دلته يې بيا هم لنډه يادونه کېږي:

۱- **د زغرو جوړولو صنعت:** حضرت داؤد عليه السلام ته الله تعالیٰ د زغرو جوړولو علم ورښوولی و، چې آيت يې د مخه ذکر کړای شوی دی، بيا تکرار ته اړتيا نه ليدل کېږي، او د سبا په سورت کې الله تعالیٰ فرمايلي دي:

«وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ○ أَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ....»(۱)

او موږ داؤد عليه السلام ته اوسپنه پسته کړې وه او حکم مو ورته کړی و چې جوړوه زغرې اوږدې، او ښه اندازه ساته په کړيو کې يې، او په اوبدلو کې يې چې کړۍ او حلقې يې سره برابرې وي.

بو سېره په زغرو داؤد عليه السلام د حدادۍ (آهنګرۍ) نور سامان آلات، لکه لور، تبر، چاقو، چاړه او داسې نور ادوات هم جوړول.(۲)

---

(۱) د سبا سورت، ۱۰-۱۱ آيا تونه، ۳۴ سورت، ۲۲ سپاره.

(۲) تفسير عثماني، ج ۲، ص ۷۲۱.

۴- دقضايي مسايلو علم : الله تعالیٰ حضرت داؤد علیه السلام ته دخلکو ترمنځ د شخړو د فیصلو کولو علم هم ورکړی و، لکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي :

« وَاٰتَيْنٰهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ٥ » (۱)

او مونږ داؤد (علیه السلام) ته نبوت ورکړ او د شخړو د فیصلو علم مو ورته ورکړ.

يعنې دا چې پر دعوی کوونکی باندې شاهدان دي او پر منکر باندې قسم دی. امام قرطبي وېلي دي .

« وهو اول من تكلم بها » (۲)

يعنې حضرت داؤد علیه السلام له ټولو څخه لومړی هغه څوک و چې په خپل قضايي حکم کې يې وفرمايل :

« البينة على المدعى واليمين على المنكر »

د شاهدانو وړاندې کول پر دعوه کوونکي باندې دي او قسم کول پر منکر باندې دي .

## (۶) سليمان عليه السلام :

حضرت سلیمان علیه السلام هم د ډېرو صنعتونو او فنونو ایجاد کوونکی و چې يو څو يې د بېلګې په توګه دلته وړاندې کول شي :

---

(۱) د ص سورت، ۲۰ آيت، ۳۸ سورت.

(۲) قرطبي تفسير، ج ۸، ص ۱۰۷ .

۱- د آرټ او مصورۍ فن : حضرت سلیمان علیه السلام لومړنی شخص ؤ چې په اسلامي تمدن، تهذیب او ثقافت کې یې د آرټ او مصورۍ صنعت ایجاد کړی و. د غرونو، سمندرونو کلاګانو، ونو او نورو غیر ذی روح اشیاؤ تمثالونه او تصویرونه به یې جوړول. او د ساه لرونکو مخلوقاتو له تصاویر جوړولو څخه یې خپل مامورین او د لطیفه فنونو کارکوونکي منعه کړي وو؛ ځکه چې په اسلام کې له حضرت آدم څخه تر دې دمه د ساه لرونکو مخلوقاتو تصویر جوړول حرام دي. برابره خبره ده که د ژوندي ژوي وي او که د مړه شوي وي؛ په مطلق ډول روا نه دی.

۲- تعمیرات : د غرانو حضرت سلیمان علیه السلام د ځو پوړیزو سترو تعمیرونو جوړولو فن هم ایجاد کړی و. په شام او کابل کې یې د ننګ د تعمیرونه جوړ کړي وو چې په خپل عصر کې بې سیاله وو.

۳- د حدادۍ (اهنګرۍ) فن : حضرت سلیمان علیه السلام له اوسپنې او مسو څخه د لویو لویو دېګونو، لګنونو، څمڅو او نورو آلاتو د جوړولو صنعت او د حدادۍ فن هم ایجاد کړی و. الله تعالی د غه درې واړه د سبا په سورت کې بیان کړی دي او فرمایلي یې دي:

«يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِنْ مَحَارِيبَ وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُورٍ رَاسِيَاتٍ» (د سبا سورت، ۱۳ آیت، ۳۴ سورت، ۲۲ سپاره)

او سلیمان علیه السلام ته به یې څو پوړیز د ښکلي تعمیرونه جوړول او کلاګانې به یې د ده له نخچې سره سمې ورته جوړولې او وراز وراز تصویرونه به یې ورته جوړول. او د تالاوونو په شان به یې له مسو څخه لوی لوی لګنونه ورته جوړول او پر نغریو باندې تلپاتې پراته کلک دیګونه به یې ورته جوړول.

٤- د ښیښې جوړولو صنعت: الله تعالیٰ سلیمان علیه السلام ته د ښیښې جوړولو د صنعت علم هم ورکړی و. او سلیمان علیه السلام هغه لومړنی څوک و چې د ښیښې جوړولو صنعت یې مینځته راوړی و، ان تر دې چې په تعمیراتو کې یې هم ښیښې لګولې وې او د خپل شاهي محل د سرکاري میلمستون فرش یې هم له ښیښې څخه جوړ کړی و، او نابلده ته به د اوبو تالاو ښکارېده.

٥- د نقاشۍ صنعت: حضرت سلیمان علیه السلام د نورو لطیفه فنونو په لړکې د نقاشۍ صنعت هم مینځته راوړی و.

الله تعالیٰ د نمل په سورت کې فرمایلي دي:

«قِيلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ ۖ فَلَمَّا رَأَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَكَشَفَتْ عَن سَاقَيْهَا ۚ قَالَ إِنَّهُ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّن قَوَارِيرَ ۗ»(١)

د یمن پاچاګۍ بلقیس کله چې د سلیمان علیه السلام دربار ته راغله، نو ورته وویل شو چې دغې بنګلې ته ننوځه، د حضرت سلیمان علیه السلام د ملاقات له پاره. نو کله چې بلقیس د میلمستون هغه کوټه

---

(١) د نمل سورت ٤٤ آیت، ٢٧ سورت، ١٩ سپاره.

ولیده چې سلیمان علیه السلام پکې ناست و، نو کومان یې پرې وکړ چې د ژوړو اوبو . او له خپلو دوایرو پښو څخه یې دپرتوک پایڅې پورته کړې چې لندې نه شي . نو حضرت سلیمان ور ته وویل : دا اوبه نه دي، بلکې دایوه بلکاره ده چې له ښیښو څخه نوې جوړه شوې ده، په ځمکه هواره .

٦- د صابون جوړولو صنعت : دغه راز د الله تعالی نبي او پاچا حضرت سلیمان علیه السلام د صابون جوړولو صنعت هم ایجاد کړی و او هغه لومړی هغه څوک و چې دغه غوره انساني اړتیا یې صنعت په مینځ ته راوړی و او هم هغه لومړنی انسان و چې صابون یې استعمال کړی و . لکه چې امام ابن قتیبه دینوري ویلي دي:

« و أول من عمل الصابون سلیمان بن داوُد علیهما الصلاة والسلام » (١)

او لومړنی هغه څوک چې صابون یې ایجاد او جوړ کړی او استعمال کړی و حضرت سلیمان بن داوُد علیهما السلام و .

٧- له سمندر څخه د جواهراتو دا ستخراج صنعت :

حضرت سلیمان علیه السلام د الله تعالی له هدایت سره سم له سمندر څخه د جواهراتو د استخراج د صنعت بنسټ هم ایښودلی و . او هغه لومړنی هغه څوک و چې خپلو ماتحتانو ته یې د لامبو (سباحت)

---

(١) المعارف، ص ٢٤١ .

زده کړه هم وښود له او بیا یې هغوی له سمندرڅخه د جواهراتو او قیمتي موادو په استخراج وګومارل، او هغوی مرغلرې، عنبر او نور شیونه استخراجول، چې د حضرت سلیمان علیه السلام د اقتصاد او سلطنتي بیت المال د پیاوړتیا په زره پورې عوائد وو، چې له هغه څخه د مخه هیڅ هم دغه نوښت نه و کړی.

الله تعالیٰ د حضرت سلیمان علیه السلام د دغه صنعت په اړوند فرمایلي دي:

«وَالشَّيَاطِينَ كُلَّ بَنَّاءٍ وَغَوَّاصٍ ۝» (۱)

او مونږ حضرت سلیمان علیه السلام ته دیوان تابع وګرځول نو لوی لوی عمارتونه به یې ورته جوړول او په سمندرونو کې د ملغلرو او نورو جواهرو د ایستلو له پاره غوټه وهونکي وو.

امام قرطبي رحمة الله علیه د دغه مبارک آیت په تفسیر کې ویلي دي:

«فسليمان أوّل من اُستُخرِجَ لَهُ اللُّوءلوءُ مِنَ البحر» (۲)

نو حضرت سلیمان لومړنی هغه څوک و چې له سمندر څخه مرغلرې ورته ایستلی شوې. او یو شاعر هم ویلي دي:

* اِلاَّ سُلَيْمَانَ اِذْ قَالَ الْإِلٰهُ لَـهُ * قُمْ فِي الْبَرِيَّةِ فَاحْدُدْهَا عَنِ الْفَنَدِ *

---

(۱) د صٓ سورت، ۲۷ - آیت، ۳۸ سورت، ۲۳ سپاره.

(۲) قرطبي تفسیر، ج ۸، ص ۱۳٤.

* وَخَيَّسِ الْجِنَّ اِنِّیْ قَدْ اَذِنْتُ لَهُمْ * يَبْنُوْنَ تَدْمُرَ فِی الصِّفَاحِ وَالْعَمَدِ

مګر و ویل الله چې سلیمانه!

سستی په پېښ ده لویه وچه کې تعمیر تالره بوبیه.

او په سیمه دپیر یانو کې هم مادوی ته حکم کړی دی چې تاته

په هواره او هسکه کې تعمیرونه جوړ کړي.

۸- **د بیطره فن:** د آسونو د روزلو او ساتلو فن هم حضرت

سلیمان علیه السلام پیل کړی و، او د الله تعالی له دغه مخلوق سره

یې خاصه مینه لرله. تل به یې څغل پرې کاوه او د هغوی خصوصي

ساتنه به یې کوله. الله تعالی فرمایلي دي:

« وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمٰنَ ۚ نِعْمَ الْعَبْدُ ۚ اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ ۝ اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ۝ فَقَالَ اِنِّيْۤ اَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ ۚ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۝ رُدُّوْهَا عَلَيَّ ۚ فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ ۝ »(۱)

او موږ داوُد ته سلیمان و با ښه چې ښه بنده و، بېشکه

چې دی الله تعالی ته ډېر رجوع کوونکی دی. کله چې ده ته

د ورځې په وروستۍ ونډه کې پر ده باندې آسونه وړاندې

کړای شول، پر درې پښو ولاړ. نو ده وویل: بېشکه ما

د الله تعالی په عبادت او مال کې له آسونو سره محبت غوره

کړی دی، تر دې چې په څغل کې ورځه پټه شول، نو حکم یې

---

(۱) ص سورت، ۳۰-۳۳ آیتونه.

وکړ چې بیا یې مانته راستانه کړئ ، نو کله چې یې هغوی ته راوستل نو د هغوی پر غاړو او پښو یې په محبت سره لاس وهل پیل کړل .

۹- د کاریزونو کیندلو حرفت : حضرت سلیمان علیه السلام د ځمکې داعمار په تکل د مختلفو هیوادونو په بیدیا وو او دامانونو کې د کاریزونو د کیندلو پروسه پیل کړه ، چې د ده په سطیره کې وو . او د خپل حکومت په موده کې یې په سلګونو کاریزونه کیندلي وو چې په زرګونو هکتاره شاړې ځمکې یې ودانې کړې او مختلفي انساني پرګنې یې پرې میشتې کړې او له هغه څخه د مخه هیچا هم دغه نوښت نه و کړی او حضرت سلیمان علیه السلام لومړنی هغه څوک و چې دغه فن یې ایجاد کړ .

۱۰- د ډاک نظام : حضرت سلیمان علیه السلام لومړنی هغه څوک و چې د ډاک رسولو نظام یې ایجاد کړی و ، او د حضرت سلیمان علیه السلام د ډاک رسولو نظام ځمکنی هم و او هوایي هم . ځمکنی یې د دېوانو او انسانانو په وزله و ، او دا هغه وګړي وو چې د همدغې دندې له پاره یې روزلي وو . او د هوایي ډاک رسولو دنده یې د مرغانو په غاړه وه ، چې سبا بېلګه یې د ببوتوتکي (هدهد) په وزله د یمن ملکې ته د دعوتي لیک لېږل و ، لکه چې الله تعالیٰ د نمل په سورت کې حکایت ورڅخه کړی دی . چې سلیمان علیه السلام

هدهد ته خط ورکړه او بیا یې ورته وویل:
«اِذْهَبْ بِّكِتَابِىْ هٰذَا فَاَلْقِهْ اِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانْظُرْ مَاذَا يَرْجِعُوْنَ ○»(۱)

ای هدهده! ته زما دا لیک بلقیس ته یوسه او هغوی ته یې وغورځوه. دوی ته بیا ګوښه له دوی څخه، او پټ دوی ته کابو ودرېږه او له ورایه وګوره چې هغوی زما ددې لیک او پیغام په اوریدو سره څه عکس العمل ښکاره کوي.

مطلب دا چې حضرت سلیمان علیه السلام خپلو استازو ته د سفارت آداب، د ډاګ سپارلو او ځواب اخیستلو اصول ور زده کړي وو او داسې نظام یې پلی کړی و چې اوس یې هم ساری نه میندل کېږي.

۱۱- **فوځي نظام:** حضرت سلیمان علیه السلام د فوځ خورا ښه غوره نظام جوړ او پلی کړی و. که څه هم د لوحې ځل له پاره وسله وال جهاد حضرت ادریس علیه السلام پیل کړی و، مګر فوځي نظام یې نه لاره او بیا حضرت داؤد علیه السلام هم فوځي نظام لاره، مګر هغه محدود و، له دې کبله چې حضرت سلیمان علیه السلام د کوردې نږدې پاچا و، نو د نورو په پرتله یې فوځ هم زښت لوی و، چې د ښتهېز نظام غوښتنه یې کوله. چې له همدې کبله حضرت سلیمان علیه السلام

---

(۱) د نمل سورت، ۲۸- آیت، ۲۷ سورت، ۱۹ سپاره.

د الله تعالیٰ په ښوونه خپل فوځ ته ځانګړي شي عي اصول او قواعد ښودلي وو، او هرچا ته یې بېلا بېله فوځي دنده سپارلې وه.

داوه دکروړونو کلونو پخوانیو هغو انسانانو د تهذیب او تمدن یوه کوچنۍ نمونه. بیاهم که طاغوتي او الحادي فکرخاوندان د وی ته وحشي او بې تهذیبه او بې تمدنه وایي ډېره لویه غلطي کوي او پرحق سترګې پټوي.

هسې خو الله تعالیٰ خپلو بې لک څلیریشت زره زیات تو کمو انبیاوو ته هریوه ته بېلابېل صنایع ښوولي وو چې هغوی هریو په خپل امت کې په عملي ډګر کې پلي کړي هم وو. هاغم بتول که دلته ذکر کوم نو په زرګونو پا ڼو کاغذ ته اړ تیا لري، مګر په همدې بس والی کوم او دادی دیایخوري به تو که مذکوره صنایع او فنون د فهرست په توګه ذکر کوم:

| | فن او صنعت | مکتسب رسول |
|---|---|---|
| ۱ - | لیک لوست | حضرت آدم علیه السلام |
| ۲ - | ژبپوهنه | 〃 〃 〃 |
| ۳ - | بزګري او کرهڼه | 〃 〃 〃 |
| ٤ - | مالداري | 〃 〃 〃 |
| ۵ - | تمدن او عمران | 〃 〃 〃 |
| ٦ - | سیاسي نظام | 〃 〃 〃 |
| ۷ - | طب او طبابت | 〃 〃 〃 |

| شمېره | فن او صنعت | مكتب رسول |
| --- | --- | --- |
| ۸ - | رياضي علم | حضرت آدم عليه السلام |
| ۹ - | خياطي | حضرت ادريس عليه السلام |
| ۱۰ - | طب | 〃 〃 〃 |
| ۱۱ - | ميناتوري | 〃 〃 〃 |
| ۱۲ - | فلكيات او نجوم | 〃 〃 〃 |
| ۱۳ - | آرشيف | 〃 〃 〃 |
| ۱٤ - | ترکاڼی | حضرت نوح عليه السلام |
| ۱۵ - | دريا نوردی | 〃 〃 〃 |
| ۱٦ - | تعبير الرؤياء | حضرت يوسف عليه السلام |
| ۱۷ - | د معادن پېژندلو فن | 〃 〃 〃 |
| ۱۸ - | د ځمکې د سروې فن | 〃 〃 〃 |
| ۱۹ - | د کاغذ جوړولو صنعت | 〃 〃 〃 |
| ۲۰ - | د اجتماعي اقتصاد نظام | 〃 〃 〃 |
| ۲۱ - | د غلې د زېرمه کولو فن | 〃 〃 〃 |
| ۲۲ - | د زغرو جوړولو فن | حضرت داؤد عليه السلام |
| ۲۳ - | قضايي نظام | 〃 〃 〃 |
| ۲٤ - | د دباغت فن | حضرت طالوت عليه السلام |
| ۲۵ - | د سوداګرۍ فن | حضرت صالح عليه السلام |
| ۲٦ - | تول او پيمانه | حضرت شعيب عليه السلام |
| ۲۷ - | د آرټ او مصورۍ فن | حضرت سليمان عليه السلام |

| شمېره | فن او صنعت | مکتسب رسول (ع) |
|---|---|---|
| ۲۸ - | تعمیرات | حضرت سلیمان علیه السلام |
| ۲۹ - | حدادی | 〃 〃 〃 |
| ۳۰ - | شیښه جوړولو فن | 〃 〃 〃 |
| ۳۱ - | د نقاشۍ فن | 〃 〃 〃 |
| ۳۲ - | د صابون جوړولو فن | 〃 〃 〃 |
| ۳۳ - | له سمندر څخه د جواهرو استخراج | 〃 〃 〃 |
| ۳۴ - | د بېطرَه علم | 〃 〃 〃 |
| ۳۵ - | د کارېز کیندلو نظام | 〃 〃 〃 |
| ۳۶ - | د ډاک رسولو نظام | 〃 〃 〃 |
| ۳۷ - | پوځي نظام | 〃 〃 〃 |
| ۳۸ - | باغوانۍ نظام | حضرت نوح علیه السلام |
| ۳۹ - | د حمامونو جوړولو صنعت | حضرت سلیمان علیه السلام |

او بیا دغه ټول زموږ خاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته بالقوه ورکړی شوي وو.

## د صنایع اصول وحی دی:

د اسلامي اُمت ټول پوهان دا عقیده لري چې ټول مشروع پېښې او ګټور صنایع له الٰهي وحي څخه مأخوذ دي، لکه چې امام راغب اصفهاني متوفی ۵۰۲ھ / ۱۱۰۸م په خپل

کتاب الذریعه الی مکارم الشریعه کې په دې ارونډ
ویلی دي:

„اصول الصناعات والمکاسب مأخوذة عن وحی"[1]

ډکر دو مشر وعو صنایعو او حرفتونو بنسټونه او
اصول له وحی څخه مأخوذ دی.

او وحی پر انبیاو نازلېږي چې له حضرت بابا آدم څخه
پیل شوی وه او پرخاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه
وسلم باندې پای ته رسېدلې ده، چې په همدې
دلیل د لومړی انسان په ځمکه کې له مېشت کېدو سره
سم انساني تمدن، تهذیب، عمران او ثقافت پیلې
شوی دی او دا نن انسان چې څو مره دیو هې،
مدنیت او ساینسی ته ب لاپي وهي دا هر څه د انبیاوو
میراث دی. او دا سلام برکت دی، او دغه چا له یاره
ویاړ او سعادت دی چې په اسلامي پوهه کړوهن
وي.

نن که د باطلو عقیدو خاوندان په څیرنه سره په
نیاومن نظر د انبیاوو کرامو مذکوره علمي
او تمدني میراث مطالعه کړي، نو د ابه و مني چې
ډکروړونو کلونو پخوانی انسان وحشي نه و، بلکې

---

(۱) الذریعه، ص ۲۰٤.

دمغوی په برکت مونږ ته الله تعالی دهدایت، علم او پرمختګ رڼا عطاء کړی ده ، له وحشت اوهلاکت څخه یې ژغورلي یو. نو د طاغوتي - الحادی اوکفري نظر خاوندان دي پردی پوه شي چې لومړني انساني توکم زیات متمدن او مثقف ؤ ، ان تردې چې د نن غیر اسلامي او طاغوتي ثقافت ، تمدن او تهذیبي فنونو او صناعتونو بنسټ هم د لکونو کلونو پخوانیو نامسلمانو انسانانو د اسلامي تهذیب په خلاف کېښودلی و.

## دغیر اسلامي تهذیب اوتمدن بنسټ کرهم هماغه لومړني انسانان

لکه څنګه مو چې دمخه یادونه وکړه دغیر اسلامي تهذیب او ثقافت بنسټ هم هماغه لومړني انسان کېښودلی ؤ ، چې یو څو بېلګې یې د اسلامي تاریخ او مفسرینو داقوالو په رڼا کې وړاندې کولی شي :

الف: د ساز او سرود د سامان آلاتو جوړولو صنعت : ابو عبدالله محمدبن اسحاق متوفی سنه ۱۵۰ھ ۶۶۷م په خپل کتاب المغازي کې ، امام طبري په خپل

کتاب تاریخ الرسل والامم کې او امام ابن اثیر متوفی ۶۳۰ھ ۱۲۳۴ع
په خپل کتاب الکامل فی التاریخ کې لیکلي دي:

«کله چې قابیل خپل بې گناه ورور وواژه، نو د خپل پلار حضرت آدم علیه السلام له وېرې څخه یمن ته وتښتېده او هلته یې د لومړي ځل له پاره د اسلامي تمدن په خلاف د کفري تمدن او تهذیب بنسټ کېښود او بیا د هغه زوی ثوبان بن قابیل د ساز او سرود د سامان آلاتو جوړولو صنعت مینځ ته راوړ. شپېلۍ، تنبور، ډول او رباب یې جوړ کړل، د سڅو په نڅولو یې بریدوکړ او د زناکارۍ ناوړه فعل هم هغه مینځ ته راوړ، لکه چې د الکامل مصنف لیکلي دي:

«إن أوّل من اتخذ الملاهی من وُلدِ قابیل رجل یقال له ثوبان بن قابیل، اتخذ المزامیر والطنابیر و الطبول والعیدان والمعازف، فانهمک ولد قابیل فی اللهو وفشت الفحشاء» (۱)

یعنی لومړی هغه څوک چې د ساز او سرود سامان یې جوړ کړ، د قابیل له اولادې څخه چې هغه نوم ثوبان بن قابیل و، هغه شپېلۍ، تنبور، طبل، رباب، سورنۍ جوړ کړل او د قابیل اولاده په چټیاتو سرشوه او بدکاري پکې خپره شوه.

---

(۱) الکامل، ج ۱، ص ۶۳

او لومړنی هغه انسان چې نڅا او رقص یې کړی و او سندره یې ویلې وه یو شخص وه چې توبلین نومېده او بیا په نارینه وُ کې لومړنی شخید ونکی د هغی زوی وُ چې توبلقین نومېده .»(۱)

## (ب) د شراب جوړولو صنعت :

په انساني نړۍ کې د لومړي ځل له پاره د شراب جوړولو صنعت هم د قابیل نافرمانې اولادې مینځته راوړ او د شرابو په څښلو یې نارینه او ښځو بریید وکړ چې په هغوی کې د فحشاء خپرولو دپاره لوی لامل هم د غه د شرابو څښل او عادت و، او د هغه وخت د نورو انسانانو د بې لارتیا باعث هم وګرځېدل چې بیا ادریس علیه السلام له مصر څخه ورغی او د هغوی پر خلاف یې جهاد پیل کړ . حضرت ادریس علیه السلام لومړنی نبي وُ چې جهاد بالسیف یې د هغوی پر خلاف پیل کړی و.

# آرټ او مصوري

ابوریحان البیروني (متوفی ۳۵۲ هجري - ۱۰۴۸م) په خپل کتاب الاثار الباقیه عن الامم الخالیة اویایم مخ کې ،

---

(۱) الکامل في التاریخ ، ج ۱ ، ۶۳ .

حافظ ابن عساکر (متوفی ۵۳۲ هـ-۱۱۷۶م) او علامه
ابن خلدون (متوفی ۸۰۸ هـ - ۱۳۰۶ م) دخپل تاریخ په
دویم ټوک پنځم مخ کې او حافظ ابن کثیر په البدایه
والنهایه لومړي ټوک ۱۰۵ مخ کې لیکلي دي: له حضرت
آدم علیه السلام څخه لس پېړۍ وروسته دعراق په بابل کې د
نوح علیه السلام قوم بنوراسب د لومړي ځل له پاره
دژوندي سرو دتصویرونو او لویو لویو مجسمو
(SCULPTURE) په جوړولو هم برید وکړ او دخپل
قوم د پنځو اولیاؤ چې وفات شوي وو، تصویرونه
جوړ کړل چې دهغوی نومونه قرآن کریم وَدٌ،
سُوَاع، یعوق، یغوث او نسر ښودلي دي. او له
همدغه ځخه دبت پرستۍ او شرک ناوړه پدیده مینځته
راغله چې بیا الله تعالی حضرت نوح علیه السلام ورته مبعوث
کړ او هغوی ته یې نهه نیم سوه (۹۵۰) کلونه دعوت ورکړی و،
مګر په هغوی کې دشرک او بت پرستۍ عقیده ټینګه وه او
له شرک څخه نه جاروتل، چې د هغوی دکفر او الحاد
په نتیجه کې ګرد انسانیت په نړیوال توفان کې لاهو کړی
شو.

مطلب دا چې د اوسني غیر اسلامي آرټ او مصوّرۍ لومړی
تادا و ایښودونکی هم هماغه انسان وچې اوس یې ځینی له
اسلام او بشري تاریخ نه ناخبره دالحادي مفکورې خاوندان وحشي بولي.

## داستعمار پدیده

جرجي زیدان په خپل کتاب العرب قبل الاسلام کې او حمزه اصفهاني ( ۲۷۰ هجري متوفی ) په خپل کتاب تاریخ ملوک الارض کې لیکلي دي :

« په بشري ټولنه کې د ښکېلاک او مریتوب پدیده د لومړي ځل لپاره (۰۰ ۴۵ ق م) عادیانو راویستلې ده . هغوی به پر کوچنیو کوچنیو قومونو یرغلونه کول . سیمې او ښته به یې ورڅخه نیول او هغوی به یې خپل مریونه کرځول ، او په دغه قوم کې چې په احقاف کې اوسېدل ، دوه سوه پښځوسشت پاچاهان تېر شوي دي .

## تعمیرات

په تعمیراتو کې هم د هغه وخت انسان ډېر پرمختګ کړی و او د هغوی جاهلي تمدن دومره پیاوړی شوی و چې په هواره ځمکه سربېره ان په غرونو کې یې هم تعمیرونه او ودانۍ جوړې کړې وې او هغه هم لړۍ نه بلکې په زرګونو وې ، لکه چې امام قرطبي په خپل تفسیر کې د ثمودیانو د تمدن په هکله د فجر سورت د دې مبارک

---

(۱) العرب قبل الاسلام ، ص ۲٤۰ ، تاریخ ملوک الارض ، ص ۱۱۰ .

آیت په تفسیر کې ویلي دي : « وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ »[1]

او له ثمودیانو هغو سره ستا رب څه کړي وو چې په وادي کې یې لویې تیږې او کېڼې غوڅې کړې وې.

امام قرطبي ویلي دي :

« اول من نحت الجبال والصور والرخام ثمود، فبنوا من المدائن ألفا وسبعمائة مدينة كلها من الحجارة »[2]

په بشري ترکه کې لومړی هغه قوم چې د غرونو کینستلو فن او تصاویرو جوړولو فن او د رخام د برو جوړولو فن یې پیل کړی و، د ثمودیانو ملت و. هغوی په غرونو کې یوزر اووه سوه (۱۷۰۰) ښارونه جوړ کړي وو او بیا یې په دغو ښارونو کې دوه میلونه او اووه لکه ډبرین کورونه، معبدونه، سرایونه او کلاګانې جوړې کړې وې، او دا ټول په غرونو کې وو.

یعنې غرونه یې توږلي وو او دننه یې پکې ښارونه، کورونه، سرایونه او معبدونه په ډبرو کې جوړ کړي وو، چې ګرد ابرتیا یې مراکز لکه هدیرې او مقابر، د شورا مراکز، د لوبو ځایونه او بنورېکي وو او بیا یې ټول نقاشي کړي وو، چې

---

(۱) د فجر سورت، ۹ آیت، ۸۹ سورت.

(۲) قرطبي، ج ۱۰ جز ۲۰، ص ۳۳.

اوس يې لرغونې آثار په وادي القرىٰ کې چې په مداين صالح سره شهرت لري، موجود دي. (۱)

لنډه دا چې له درې سوه زره کاله پخوانۍ انسان څخه نیولې تر څلور نیم زره قبل مسیح انسان پورې ټول وحشي نه وو. برابره خبره ده که هغه کافر وو که مسلمان، ټول متمدن مهذب او مثقف وو. هغوی ته وحشي ویل دانسانیت سپکاوی دی او دانساني کرامت خلاف قول دی.

دکمونیزم د یوې سفسطې پیروان خوځکه وحشي وونه وايي چې هغوی د داروینیزم پیروان دي او داروین خو دانسان پر اصالت قایل نه دی، بلکې د بیزو تکاملي بڼه يې کڼي او وايي چې انسان د بیزو تکاملي بڼه او له انسان څخه پرته د داروین دغه فرضیه په بل هیڅ شي کې نه ده ویل شوې، ځکه چې هیچا نه دي لیدلې چې له میږي څخه هاتي او له هاتي څخه میږی جوړ شوی وي.

---

(۱) تاریخ ارض القرآن، سید سلیمان ندوی. معجم البلدان ج ۵، ص ۳۴۵، یاقوت حموي.

# ألفبا څه وخت منځ ته راغلې ده؟

... له اسلام او انساني تمدن نه ناخبره به دي ګروهمن وي هغه وخت چې الفبا مینځته نه وه راغلې انسانانو به د تصویرونو په مرسته لیک کاوه. دداډول خبره سمه نه ده ، ځکه په انبیاوو کرامو باندې چې څومره آسماني کتابونه نازل شوي دي هغو ټولو الفبا لرله. په دې سلسله کې تر ټولو لومړی په حضرت آدم علیه السلام یوویشت صحیفې نازلې شوې وې. که یې الفبا نه لرله تلفظ کول یې څرنګ ممکن وو. نوله هغې کبله لومړني انسان حضرت آدم علیه السلام ته لومړی د الفبا تعلیم ورکړای شوی و او بیا له هغې وروسته پرې صحیفې نازلې شوې وې ، لکه چې په یو مرفوع حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :

له حضرت ابوذر غفاری (جندب بن جناده) رضی الله عنه (متوفی ۳۲ هجري - ۶۵۲ م) څخه روایت شوی دی چې ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل :

«یا رسول الله أی کتاب أُنزِل علی آدم؟ قـال :

كتاب المعجم . قلت : اى كتاب المعجم؟ قال :
ا - ب - ت - ث - ج . قلت: يا رسول الله كم حرفًا ؟
قال : تسعة وعشرون حرفًا .... » (۱)

ترجمه: اى د الله تعالیٰ رسوله ! پر آدم عليه السلام
كوم كتاب نازل كړای شوی و؟ ورته وېي فرمايل :
د هيجاء كليماتو كتاب . ما ورته وويل: څرنګ معجم؟
راته وېي فرمايل : ا - ب - ت - ث - ج . ما ورته
وويل : ای د الله تعالیٰ رسوله ! ټول څو توري وو ؟
راته وېي فرمايل : ټول نهه ويشت حروف وو.

د ا حديث امام احمد رحمة الله عليه په خپل مسند كې روايت
كړي دي . مګر يوه ځكه يې له ابوذر غفاري څخه اوبله ځكه يې
له حضرت ابو امامه څخه چې هغه هم مخكې مونږ راوړي
ده ، له حوالې او سند سره .

د رسول الله صلى الله عليه وسلم د غه مبارك حديث چې
د الله تعالیٰ خفی وحي ده ، د لوېد يځو څېړونكو هغه
ټوله ادانه نروي چې د كوډو ماتو څېړنو او بې اساسه
اټكلونو پر بنسټونو ولاړه ، د ژ بپوهنې په هكله يې كړي ده ،
هغه هم د شرابي مخمور او بې سده شويو مغزونو وزله

(۱) رواه احمد ، جزء امنه فی مسنده ، ج ۵ ، ص ۱۷۹ ،
الكامل فی تاريخ ، ج ۱ ، ص ۵۸ - ابجد العلوم ، ج ۱ ، ص ۱۶۳ .

چې نن یوځه وایي او سبا بل څه . او که له اصل حقیقت څخه خبر هم وي د اسلامي امت د توکم د بې لارتیا په خاطر هغه پټوي او داسې یوڅه ورته ښکاره کوي چې له حقیقت څخه لرې وي . هغوی د غه کار یوازې د ژبې او هنې په هکله نه دی کړی ، بلکې په دولسمه میلادي پېړۍ کې کله چې هغوی علمي فنون کمکوري کړل (چې هغوی د رښاس دور ورته وایي) په هکر دو فنونو کې یې د فکري استعمار د دیکته کولو او تزریق له پاره داسې کړي دي او هرڅه یې داسې مسخ کړي دي لکه تورات ، انجیل او زبور چې یې تحریف کړي دي او پر الله تعالیٰ او د هغه پر رسولانو یې درواغ تړلي دي .

په هر صورت د یو مؤمن او مسلمان توکی له پاره کله چې د قرآن او نبوي حدیثو فیصله واوري شي ، هغه ته روا نه ده چې دلیل او شک په کې وکړي او یا کومې بلې مرجع ته رجوع وکړي ، بلکې شرعاً پرې فرض دي چې د زړه له کومې یې قبول او عمل پرې وکړي او د موضوع په اړوند ه نورې ګردې فیصلې پرې ږدي .

# د «شعور» او «مادې» یو پر بل دوړاندې والي مسئله

دکفري او الحادي عقيدې خاوندان په دې نظر دي چې په پنځ یا کاینا توکې طبیعي اصوات یا غږونه دومره لرغوني دي، لکه پخپله کائینات. دباران، تندر، سيلونو او آتش فشان آوازونه ددې مثالونه دي. دوی وايي چې وروسته بيا غيرنامياتي مادې نامياتي شکلونه اختيار کړل او وې بوټي مينځ ته راغلل، بيا په ابتداء کې يو خلياتي ځناور، ځناورسره انسان پيدا شو. ده سره شعور پيدا شو...»

د وی د پراگماتيزم او کمونيزم Communisme دمفکورې دتبليغ هاندکوی څو نور وکړي. پې لارې کړي. دکمونيزم له اصولوڅخه يو دادی چې دوی عقيده لري چې ماده پرشعور باندې مقدمه او دمخه ده. او ددغه نظر لومړنی سنکارندوی دجرمنې هيګل (۱۸۳۱م کال) و. او هغه دغه پې لارې کووسکې نظريه د مشهور يوناني فيلسوف هراکليت (هراقليطوس) څخه چې په (۵۰۰ ق م) کې تېر شوی و، اخيستې ده. دهغه شاګرد زينون قبرصي دهغه نظرياتي فلسفه ورڅخه انتقال کړې

چې بیا کارل مارکس یهودي د دغې مفکورې دڅوندې
کولو او بیا وړ تیا په تکل پا څون وکړ او د دغې اسلام دښمنې
مفکورې له پاره یې د انګلس په ملګرتیا په ۱۸۴۸ع کال کې
منشور the MANE best جوړ کړ او د ماتر یالیزم یالکتیک
نوم یې پرې کیښود. "(۱)

کارل مارکس چې په ۱۸۸۳ م کال په لندن کې مړ شوی و
د هیګل په مادي فلسفه کې بدلون راوست او هغه داسې چې
هیګل د یالکتیک منطق له ایډ یالیزم سره ضمیمه کړی و
او په ایډیالیزم کې شعور او فکر اصل ګڼلی شي او ماده
یې فرع او روح یې پر ماده باندې مقدم ګڼلی ، مګر مارکس
او د هغه اندیوال فریدریک انګلز د ایډ یالیزم ونډه ورڅخه
حذف کړه او د هغه پر ځای باندې یې ماتر یالیزم
(MaterieLeAlism) اصالة ماده اضافه کړ.
له همدې کبله به کارل مارکس ویل : د هیګل د فلسفې
عیب دا و چې پر اصالة الفکر او پر ماده باندې د روح
د مقدم والي معترف و ، ګواکې د هغه فلسفه پر سر
باندې ولاړه وه او مونږ پر پښو ودروله.
چې بیا وروسته د غه مادي نظر یه په مارکسیزم marxisme
باندې ونومول شوه.

---

(۱) سیر حکمت در اروپا ، ج ۲ ، ص ۳۶۵ ، مصنف محمد علی فروغی .

که څه هم د ماتریالیزم او کمونیزم بحث کړ کیچن
او بې مزې دی ، خو د مجبوریت له مخې پر لنډیز سره
څوخبرې یرې کولی شي .
دد یالکتیک ماتریالیزم بنسټیز اصول په لاندې
ډول دي :
(الف) د تحول اصالت او قانون .
(ب) د جهش او بدلون قانون .
(ج) د متقابل تاثیر او اغېزې قانون .
(د) د ضدینو د اجتماع عقیده او قانون .
(هـ) پر شعور او روح باندې د مادې د مقدم والی
عقیده او قانون .
دکمونستانو د دغو عقیدوي قوانینو په ترد ید
کې په عربي ، اردو، فارسي او نورو ژبو کې په لسګونو
کتابونه د اسلامي امت د پوهانو او نورو ړوڼ اندو
له خوا لیکل شوی دي ، چې له همدې کبله زه
د یو ر تنیو کمونستي نظریاتو په تردید کې اوږد
بحث نه کوم ، صرف یو یو دلیل د دوی دیورتنیو
خرافاتو په رد کې ذکرکوم . د زیاتو معلوماتو
له پاره دې په دې اړوند لیکلو کتابونو
ته مراجعه وشي :

# اصل تغیر

کمونستان وايي په نړۍکې چې څومره موجودات اوحوادث دي له استثنا پرته تغير اوتحول منونکی دی. او په دې عالم کې هيڅ داسې يو موجود نشته چې پر ايکی يو حالت ثابت پاتې شي، بلکې هر څيز تغير ميندونکی دی. هرشی دکېد و په حالت کې دی نه د اوسېد و په حالت کې. هغه شی چې ثابت اونه بدلېدونکی دی يوازې اويوازې تغير اوبدلون دی. په دنيا کې هيڅ يوشی ختميدونکی نه دی او تل د يوشي پای د بل شي پيل وي.

هر اکليت و يلي دي: دا دنيا د سمندر په شان ده چې تل بهيږي، يو حالت يې د بل په څېر نه دی، يو شی هم ثابت او په يو حال باقي نه دی.(۱)

**رد:** کمونستان دغه اصل تردې ډيالکتيک روح او څيني يې يوازې همدغه يو اصل د ډيالکتيک کمنهی اوخپله نظريه پکې خلاصه کوي. مگر ددوی دغه اصل ببخي غلط دی، ځکه خو دوی په دی هکله

(۱) سير حکمت در اروپا، ج ۱، ص ۷، دمحمد علی فروغی تاليف.

هیڅ یو مدرک هم نه لري او نه یې کوم منطقي دلیل وړاندې کړی دی.

دویم دا چې دوی به دې هکله د سمند د یا هکه مثالونه وړاندې کړي دي. هغه کلي نه دي ځکه د ریاضي په علم کې، د فزیک او شیمیا په علمونو کې، د جغرافیه او انسان پېژندنې په علمونو کې داسې قوانین ډېر موجود دي چې په پنځیزه توګه ثابت او باقي دي او هیڅ بدلون نه مومي. او سبه ساری او مثال یې دا دی چې آیا تر اوسه پورې کوم نارینه کمونست سنځه شوی دی، یا د هغوی کومه سنځه نارینه شوې ده، یا د دوی په جسم کې زړه په بډوډي یا بډوډی په زړه بدل شوی دی یا په کائناتو کې داسې یو موجود شته چې هغه خپله اصلي بڼه له لاسه ورکړې وي بل څیز کرځیدلی وي. د مثال په ډول اوښ بدل شوی وي او د خوسکي بڼه یې غوره کړې وي، او یا په نورو څیزونو کې د غه ډول کوم بدلون راغلی وي.

زموږ دا ایمان دی چې په کایناتو کې د مادې نه بلکې د الله تعالیٰ سنت جاري دی او د الله تعالیٰ سنت په هرڅه کې ثابت، باقي او تلپاتې دی. الله تعالیٰ فرمایلي دي:

«... فَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللهِ تَبْدِيلاً ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللهِ تَحْوِيلاً ۝» (۱)

پس له سره به نه مومې تهٔ دالله تعالیٰ سنت لره هیڅ اړول او بدلول. او بیا به هیڅکله ونه مومې ته دالله تعالیٰ سنت لره هیڅ ګرځول.

یعنې دالله تعالیٰ په تخلیقي او تنظیمي قوانینو کې هیڅوک بدلون او تغیر نه شي راوستلی، چې شپه ورځ او یا ورځ شپه وګرځوي یا لمر له لویدیځ څخه راوخیژوي او په ختیځ کې یې ډوب کړي. په عالم کې یې چې کوم نظام له پیل څخه نافذ کړی دی هغه په ترتیب سره جاري وي. نو دکمونېزم د نظام د تغیر د قانون اصالت عقلاً او نقلاً غلط او بې اساسه دی او دد ې په بطلان کې په افاق او انفس کې دومره شواهد او دلایل موجود دي چې که چیرې هغه ټول راوړل شي نو په سلګونو پاڼې به ورڅخه ډکې شي، خو بیا به هم تمام نه شي.

البته که چیرې دکیمیاوي او شیمیاوي تعاملاتو په وسیله په ځینو څیزونو کې جزئي یا کلي تغیر او بدلون راوستلی شي، نو دغه تغیر په خیله کمونستان او مادیون

---

(۱) دفاطر سورت، ۴۳ آیت، ۳۵ سورت، ۲۲ سیاره.

هم نه مني ، ځکه د هغه تغیر ته هغوی طبیعي تغیر، نه وایي بلکې میخانیکي تغیر یې بولي. دوی چې د کوم صراع او تغیر دعوه کوي هغه پنځیز تغیر او بدلون دی چې په عالم کې جریان لري او نه ختمیږي. (۱)

## دویمـــه خبره:

# جهش

د جهش پښتو معنا اوښتون دی. کمونستان او د دیالکتیک ماتریالیزم پلویان جهش ته «په کیفیت سره د کمیت بدلون او اوښتون» هم وایي او دا دعوی لري هر هغه څیز چې د تکامل یعنې بشپړتیا پړاو ته ورسیږي په ناڅاپي توګه د هغه کمیت په بشپړه توګه په کیفیت سره منقلب کیږي لکه چې انګلز دا خبره په خپل کتاب «انټي دوهرنیک» کې ښه په تفصیل سره کړې ده. او همدارنګه ژرژ پولیتسر هم په خپل کتاب «اصول مقدماتي فلسفه» کې کړې ده. یعنې دوی وایي: که څه هم تکامل او تغیر د دی

(۱) الاتجاهات الفکریة المعاصرة، ص ۲۰۶ - ۲۰۷، مصنف ډاکټر علي جریشه.

باعث گرځي چې ټول شیز موجودات او نور حوادث
د کمیت له نظره پرمختګ وکړي او زیاتوالی پکې راشي
مگر دغه کمي تکامل نه خو تل ترتله پاتې کیدلی شي
او نه په لایتناهي توگه خپل زیاتوالي ته دوام ورکولی شي.
ځکه چې په خپل پرمختګ کې اخیر داسي یو پړاو ته
رسیږي چې په ناڅاپي او غیر مترقبه توگه په بشپړ
ډول انقلاب پکې راځي او کمیت یې په هر اړخیز ه
توگه په کیفیت سره بدلیږي. چې مثال یې نړیوال توپان
دی چې د ځمکي کمیت یې په کیفیت سره بدل کړ، ان تردې
چې د انسان د تمدن او ژوندون بڼه یې هم د ځمکي
پرمخ بدله کړه.

**رد:** د کمونستانو دا نظر یه هم غلطه او بې اساسه
ده چې په کائناتو کې په کلي ډول او سېتون یا د دوی
په اصطلاح جهش راځي. او په دې هکله ډیر ساد ه
دلیل چې د دوی دغه کلیه قاعده تردیدوي د انسان وجود
دی. کله چې د مور په گېډه کې د ده نطفه وغورځول
شي، نو د ده تر مرگ پوري څو مره پړاوونه چې پرې
تیریږي، او همغه داسي چې لومړی نطفه وي بیا د نارینه
د سپرم X-Y د ښځي د ووم د X له گډون سره زایگوت
وگرځیږي چې د قرآنکریم په اصطلاح أمشاج ورته ویلی شي،
بیا په دریم پړاو کې د پرسنډي وینې ټوټه وگرځول شي، بیا د

هډوکو پکه جوړه شي، بیا په پنځم پړاو کې دخلایاو دسایکل په جوړولوسره دغوښې، هډوکو، اعصابو، رګونو اونورو موادو څخه مرکب شي. په شپږم پړاوکې بشپړشي اوسلوی پکې واچولی شي، بیا جنین شي، بیا په اووم پړاوکې کوچنی وزیږیږي، بیا زلمی شي بیا بوډا شي، چې په دې ترتیب ټول نهه پړاوونه پرې تیریږي او دا ټول تدریجي وي. یو انسان هم له نطفې څخه یو دم غټ په وجود مینځته نه دی راغلی. دا ناټومي اوبیالوژي په علوموکې ددې تفصیلي تشریح شوی ده الله تعالی په قرآن کریم کې دغه تدریجي پړاوونه داسې بیان کړي دي؛

«یٰٓاَیُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَیْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَیِّنَ لَكُمْ ط وَنُقِرُّ فِی الْاَرْحَامِ مَا نَشَآءُ اِلٰٓی اَجَلٍ مُّسَمًّی ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ ج وَمِنْكُمْ مَّنْ یُّتَوَفّٰی وَمِنْكُمْ مَّنْ یُّرَدُّ اِلٰٓی اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَیْلَا یَعْلَمَ مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَیْئًا ط» (۱)

ترجمه؛ ای له بعث څخه منکروخلکو! که چیرې تاسې له بعث څخه په شک کې یاست، نو بېشکه مونږ تاسې له خاورې(۱) څخه

---

(۱) دحج سورت، ۵ آیت، ۲۲ سورت، ۱۷ سپاره.

پیدا کړي یاست، بیا مو له نطفې[۲] څخه بیامو د وینې کلکې ویني[۳] څخه بیا له یوې بوټۍ[۴] غوښې تام الخلقة او ناقص الخلقة څخه. د دې له پاره چې مونږ تاسې ته خپل بشپړ قدرت بیان کړو او ثابت پرېږدو د میندو په زیلانځونو کې هغه شی چې اراده یې وکړو، تر ټاکلې نېټې پورې چې د زېږندې وخت دی، بیا را وباسو تاسې ستاسو د میندو له ګېډو څخه کوچنیان، تر هغه پورې چې کمال او د ځوانۍ[۶] قوت ته ورسېږئ او ځینې له تاسې څخه هغه دي چې له زلمیتوب څخه د مخه یا د زلمیتوب په موده کې وفات کولی شي، او ځینې له تاسې څخه هغه دی چې ناکاره عمر د بوډاوالي[۷] ته رد کاوه شي، د دې له پاره چې نه پوهېږي په هېڅ شي باندې وروسته له پوهې څخه.

او د مؤمنون په سورت کې یې د غوښې له کلکې بوټۍ څخه وروسته فرمایلې دي:

«فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ»[۱]

بیا مونږ د غوښې بوټۍ هډوکي[۸] وګرځوله، بیا مونږ هډوکو ته غوښه ور واغوستله، بیامو ژوندی پیدا کړ دی

---

(۱) د المؤمنون سورت، ۲۳ آیت، ۲۳ سورت، ۱۸ سپاره

په پيدا يښت بل سره ، نو د بر برکت والا الله ښه پيدا کوونکی دی .

دغه راز خاتم النبين حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د بخاری او مسلم په يو مروی حديث کې د انسان دغه تدريجي جوړښت داسې بيان کړی دی:

«عن أبی عبدالرحمٰن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه قال : حدثنا رسول الله صلی الله عليه وسلم وهو الصادق المصدوق « ان احدکم يجمع خلقه فی بطن أمه اربعين يومًا نطفةً، ثم يکون ، علقة مثل ذلک ، ثم يکون مضغة مثل ذلك ثم يرسل اليه الملك فينفخ فيه الروح ويؤمر باربع کلمات : يکتب رزقه وأجله وعمله وشقی اوسعيد... »

ترجمه : له حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دی چې ويلي يې دي : مونږ ته رښتيا ويونکی پيغمبر رسول الله صلی الله عليه وسلم حديث بيان کړ او ويې فرمايل : له تاسې څخه هر يو د مور په کېډه کې څلوېښت ورځې نطفه وي ، بيا څلوېښت ورځې د ويرندې وينې ټوټه وي ، بيا څلوېښت ورځې د غوښې بوټۍ وي . بيا له هغه څخه وروسته الله تعالیٰ پرښته ور ته ولېږي او ساه په کې واچوي او د دغه جنين په اړوند څلور خبرې وليکي : "د ده روزي (۲) د ده د عمر موده (۳) په دنيا کې د ده کړه وړه

اوعمل ۰(۴) داچې په دنیاکې برښه اوصالح وي اوکه بد او طالح ۰

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د انسان دخلقت په اړوند چې یو نیم زر کلونه پخوا کوم تدریجي جوړښت چې په څلورو میاشتو لس ورځو کې بیان فرمایلی دی، الحمد لله ها غه نن ورځ معاصر طب د ساینس په رڼا کې تکي په تکي تصدیق کړی دی چې د ده له برازنده معجزاتو څخه په طب او اناټومي کې د اسلامي امت داطباؤ له پاره لاڅرګنده معجزه ده ۰

په هر صورت د دغه واضح او ډ اکیز مثال په وړاندې کولو سره دکمونستانو د جهش او یو له یوه په یوه شي کې د اوښتون فرضیه داوبو په سر دیوکنی په څېر ده چې په مازې یوکي سره له منځه دړومي ۰او ددې په لوستلو سره به دوی هم داقبوله کړي چې د دیالکتیک ماتریالیزم اصل کلی نه بلکې ددې په خلاف په کائناتو کې تدریجي قانون شرعي هم دی او معقول هم ۰

په دغه باره کې د ریاضي اوطب او اروا پوهنې په علومو کې نور هم ډېر مثالونه موجود دی چې د دوی دجهش اوناګهاني بشپړ بدلون فرضیه باطلوي ،مګر زه یې هدفه یو دلیل بسوالی کوم ۰

**یادونه:** په ذکر شوي مبارک آیت کې اود قرآن کریم په نورو ډېرو آیاتونو کې الله تعالی فرمایلی دی

چې ما بنیادم له خاورې څخه پیدا کړی دی.
سبایې کمونستان پردې باندې هم اعتراض وکړي چې بنیادم خو د مني له نطفې څخه پیدا کیږي، نو څرنګه یې د هغه د خلقت ماده خاوره بللې ده؟ نو مونږ یې په ځواب کې وایو چې په دې اړوند پوره څېړنه او تحقیق شوی دی او په هغه کې دا ثابته شوې ده چې انساني خلقت په حقیقت کې د هغو عناصرو نچوړ دی چې په ځمکه کې موجود دی، لکه چې ډاکتر احمد قرقوز په دې باره کې په خپل کتاب مع طب فی القرآن کې د دغه مبارک آیت په تفسیر کې ویلي دي چې الله تعالی فرمایلي دي:
«وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ ۝» [۱]
او مونږ خامخا انسان د ختې له نچوړ څخه پیدا کړی دی.
رښتیا هم انسان د خاورې له نچوړ څخه جوړ شوی دی، دا ځکه چې د انساني بدن په ترکیب کې او د د مني د نطفې په جوړېدو کې د غه لاندې دوه ویشت[۲۲] عناصر ونډه لري، چې په ځمکه او خاوره کې دي:

---

(۱) د المؤمنون سورت، ۱۲ آیت.

(۱) آکسیجن "O" ۲- هایدروجن "H" او دغه دواړه د اوبو په شکل کې دي. ۳- کاربون (C) له هایدروجن (H) او آکسیجن (O) سره د بدن شکریات قندونه، غوړ او مرکب اندامونه جوړوي. ٤- الکلور (Cl) (۵) کبریت (S) یعنی ګوګړ (۵) فاسفور "(P)" (٦) مګنیزم "MG" ۷- کلس "CA" ۸- پوټاشیم "K" ۹- سوډیم "NA" ۱۰- حدید "FE" یعنی اوسپنه ۱۱- نحاس "CU" یعنی مس ۱۲- ید (I) ۱۳- منګنیز "MN" ۱٤- کوبالت (Co) ۱۵- توتیا "NZ" ۱٦- مولبیډیوم "MO" ۱۷- فلور "F" ۱۸- المونیم "AI" ۱۹- بور "B" ۲۰- سیلینیوم "SE" کادمیوم "Cd" ۲۲- کروم "CR" (۲)

دغه عناصر په ځمکه کې دی او په ځمکه کې غله، سابه، وابنه او میوه زرغونیږي او دغه عناصر وریکې رادرومي بیا هغه انسان خوري او ځاروی یې خوري او دهغوی شیدې اوغوښه انسان خوري، چې په دې توګه بلا واسطه او بالواسطه دانسان بدن ته دروځي او له هغه څخه وینه او له وینې څخه مني او دسینې شیدې جوړیږي نوځکه الله تعالی دانسان دجوړښت ترکیب اوخلقت نسبت

---

(۱) مع الطب فی القرآن ص ۷۲-۷۳، مصنف ډاکټر احمد قرقوز او ډاکتر عبدالحمید باب

الله تعالیٰ خاورې ته کړی دی . او له دغه تحقیق څخه دا ثابته شوه چې دا نسان جوړ ښت او خلقت بالواسطه له خاورې څخه دی .

دریمه خبره :

# د متقابل تاثیر فرضیه

د کمونستانو د دیالکتیک ماتریالیزم دریمه فرضیه دا ده چې دغه نظر لرونکی دعوی کوي چې د نړۍ ټول حوادث په خپل مینځ کې د زنځیر د کړیو په شان دي ، که چیرې په یوه کړۍ کې کوم تغیر او بدلون رادرومي ، نو د هغې یوې کړۍ بدلون د زنځیر پر ګردو کړیو اغېزه کوي . او دا قانون د دوی په نزد عام دی ؛ که په سیاست کې وي ، که په اقتصاد کې وي ، که په فکري پدیدو کې وی او که په علوموکې وي . یعنی په یو شي کې بدلون راتلل په ګردو شیانو کې اغېزمن وي .

**رد :** د ماتریالستانو دغه فرضیه هراړخیزه نه ده کېدلای شي چې د اکتسابي علوموبشپړتیا په خپل منځ کې سره اغېزمنه وي ، مګر په ټولو کایناتو کې داسې

نه ده، ځکه د پر داسې تړکونه او صنفونه په عالم کې شته چې د هغوی له منځه تلل او یا راتلل پر نورو اصنافو هیڅ اغیزه نه کوي، چې یو څو مثالونه یې په لاندې ډول دي:

(۱) د کهکشانونو په عالم کې د پر فعلونه او انفعالونه صورت مومي او د پر بدلون پکې رادرومي چې ځینې عوالم یې د تکوین او جوړېدو په حال کې دي او ځینې نورې د فنا په حالت کې دي، مګر پر انسان او نورو عوالمونو هیڅ ډول متقابل تاثیر لیدلی شوی نه دی.

(۲) د غه راز په خپل لرې آسماني کواکبو او ستورو کې بدلونونه او تغیرات واقع کېږي، مګر د انظر غلط دی او تر اوسه پورې هیڅ لیدلی شوی نه دی چې د هغوی د بدلونونو اغېزه په بشري نړۍ کې انګېرلې شوې وي او که داسې وای نو د ماتریالیزم دیالکتیک مخکښانو خو به یې یو ساری او مثال وړاندې کړی وای، چې د هغو تغیراتو زمونږ په پرخلیک کې داسې کوم تاثیر کړی وي چې د ارزښت او یا صلړ نې وړ وي. (۱)

(۳) د دیالکتیک پلویان کله ناکله متقابل تاثیر د بشر تیا د تړون په نوم او کله ناکله د پر مختګونو د خپل منځي تړون په نومونو

---

(۱) المادية والمثالية ص ٦٢ مصنف: محمد عماره، چاپ مطابع دار المعارف مصر ۱۹۷۱.

تعبير وي ، چې ټول بې اساسه او د بې خبرو خلکو
د درو هنې له پاره دي . ځکه چې په عالم کې ډېر
داسې عالمونه دي چې يو له بل سره هيڅ تړون
نه لري ، بلکې ډېر داسې مخلوقات شته چې يو د
بل له پاره د ختمېدو لاملگرځيږي . دساري په ډول:
په خپله دانسان په بدن کې دوه ډوله جراثيم موجود
دي چې يو ډول يې دبدن د روغتيا دنده پرغاړه
لري او دويم ډول يې د جسمي روغتيا پرخلاف دي،
چې لومړي ډول ته مثبت او دويم ډول ته منفي جراثيم
ويل کيږي . نو دغه دواړه نه يوازې داچې يو له بل
سره مدد نه کوي ، بلکې په خپل مينځ کې سخته مقابله
سره کوي او هر ډول يې چې په هغه بل باندې برلاسی شي
کمزوري ختموي . (۱)

(٤) څلورم دليل دمتقابل تاثير او بشريتياوو دتړون
دفرضيې په ترديد کې ، له زيانمنو ژوو سره دعلم اوصنعت
په مرسته دانسان جنګ دی او دا ممکنه ده چې داسې ورځ
هم دغه بې امانه جنګ په نتيجه کې راشي چې ددغـــو
زيانمنو حشراتو نسل اوتوکم پای ته ورسيږي . (۲)

---

(۱) الماركسية والاسلام ص ۳٦ ، مصنف : مصطفیٰ محمود ، دارالمعارف مصر ، ۱۹۷۵

(۲) فيلسوفنما ها ، ص ۳۹۰ ، مصنف : ناصر مکارم شيرازی .

چې نېږ دې مثال يې د ملريا غوماشې دی او هرچا ته معلومه ده چې د دغه غوماشي د بېخي ختمولو له پاره داسان له پلوه څومره ډېرې هر اړخيزې هڅې او هاندونه پکار اچولې شوېدي او هغه ورځ لرې نه ده چې انسان بر دې باندې برمين شي چې دغه موذي دښمن ختم کړي او له زيان څخه يې خپل توکم ته د تل له پاره نجات ورکړي .

(٥) دغه راز ډېر داسې ژوي شته چې د خپلې بقاء په خاطر د نورو د ختمولو په هڅه کې دي او د يو تکامل د بل موجود پر وجود باندې منفي اغېزه کوي، لکه چې پخپله د کمونستانو تنازع للبقاء قانون د دې خبرې شاهد دی او د دوی يو ليډر لامارک څومثالونه هم د کمونيزم د دغه اصل د ثابتولو له پاره په اقتصادي بحث کې وړاندې کړي دي، او د دوی د متقابل تاثير کُلي فرضيه يې لغوه کړې ده .

دغه راز په انساني نړۍ کې ډېر داسې ملتونه ليدل شوي دي چې د هغوی د تمدن پرمختګ او تکامل د بل ملت د انحطاط او ضعف سبب او باعث ګرځېدلی دی او ګرځېږي چې نېږ دې مثال يې په روسيه او چين کې د کمونستي انقلا بونو د فوځونو عکس العمل و ، په

روسیه کې کله چې د بالشویکانو انقلاب بریمن شو نو د ترکستان د پنځو اسلامي جمهوریتونو هر څه یې د دې له پاره وتړورل چې پخپله پیاوړی شي ، دهغوی تهذیب او ثقافت او ایډیالوژی یې تالاترغه کړه ، اقتصادي منابع یې پخپله وحشي اوجهنمي ګېډه کې واچولې او د هغوی د شتمنۍ په وزله یې د سوپرطاقت لقب پرځان کښېنود او د متقابل تاثیر او تړون فرضیه یې پخپله درې وړې کړه ·

دغه راز هیڅوک هم له دې څخه انکار نشي کولی چې د انساني نړۍ او سنۍ موجوده علمي ، صنعتي او اقتصادي تکامل او پرمختګ بشریت له څه ډول اخلاقي انحطاط سره مخامخ کړی دی · د دیالکتیک ماټریالیزم د متقابل تاثیر له اصل سره سم بکار خوداو چې د بشر مادي تکامل دی دا خلاقي تکامل وروستی پړاو ته رسولی وای ، مګر د دې پر خلاف هغه اخلاقي اقدار چې له مادي پرمختګ څخه د مخه په بشري ټولنه کې موجود وو ، هغه یې هم په خپل راتګ سره پای ته ورسول· لکه چې تاسې ته به یادوي ، درې کاله وړاندې ۱۳۷٤ کال کې د امریکا په واشنګټن کې لس زره وګړو د ازدواج - همجنس د ترویج په تائید کې مظاهره وکړه · دې ته کمونستان څه ځواب ورکوي ، پرته له دې چې په نتیجه سر

دخپل غیر معقول او غیر طبیعي دمتقابل تاثیر له اصل څخه
لاس په سر شي او به شرمنده کېږي، د خپل د غه
قانون په غلطوالي اعتراف وکړي او هغه کلی و نه گڼي.

## څلورمه خبره:

# دضدینو اجتماع قانون

دډیالکتیک ماتریالیزم پلوي کمونستان وایي د غه
عالم چې لیدل کېږي، د اضدادو مجموعه ده، لکه چې
د یالکتیک پلار او بنسټ ایښودونکی هراکلیت ویلي
دي:

« هر شی نه که وکتل شي په یو اعتبار شته او په یو
اعتبار نشته.»(۱)

یعني دهراکلیت نظر او موخه داده چې هرڅه د یون
او تغیر په حال کې دی، چې په دې اساس د هر شي
دوجود یوه له تېرې مرحلې دده سره پیوسته او ملگری
وي، د ساري په توگه د زوږ توب او بوډاوالي مرحله د
ځوانۍ د مرحلې له ختمېد و سره نږدې ده او د یوې مېوې

(۱) سیر حکمت در اروپا، ج ۲، ص ۳۶.

يو خوا لى د هغې د خاموالي او کچه والي له ختمېدو سره
تړلې ده. څوانې د کوچنيوالي له ختمېدو سره جوخت وي
دغه راز سپين او تور چې دواړه سره متضاددي د رنګ په
اطلاق کې سره مشترک دي چې نظر په دغه پېړو ستون
سره دوه متضا د څيزونه هم غير دي او هم عين دي.
له دغو مثالونو څخه د کمونستانو مطلب د ضدينو د
اجتماع د قانون تعميم دی. ژرژپولتسر مادي فيلسوف
په دې اړوند يو مثال دا وړاندې کړی دی چې: «تاسې
نه کورئ يو انسان مړشي او له مرګ څخه وروسته يې
نوکان لوڅېږي، دېږي، سر او د بدن نور ويښتان
يې لوڅېږي او اوږدېږي، چې له دې څخه دا نتيجه لاسته
راځي چې ژوندون د مرګ په زړه کې موجود دی.» (۱)
**رد:** د کمونستان دغه فرضيه هم د هغوی د نورو-
فرضيو په څېر کاملاً غلطه او بې اساسه ده، ځکه دا به هيڅ
عقلمند ونه مني چې پايکې يو ځای، ايکې يو وخت کې ايکې يوه
موضوع، يو محمول، يو شرط، يو کميت او کيفيت سره منفي
او مثبت سره جمع او يو ځای شي، يعني وحدت زمان،
وحدت مکان، وحدت موضوع، وحدت محمول، وحدت شرط
وحدت کميت او وحدت کيفيت هم وي او بيا دوه متضا د

---

(۱) اصول مقدماتي فلسفه، ص ۱۲۵.

ځینو نه چې په خپل منځ کې یو د بل نقیض وي او بیا سره موجود شي د مثال په ډول:

په ټاکلي محال او ساعت کې، په ټاکلي ځای کې په ټاکلو شرطونو، په ټاکلي کمیت او ټاکلي کیفیت سره دا امکان لري چې زلزله وشي. او په همدغه محال، مکان همدغو شرایطو، کمیت او کیفیت سره زلزله و نه شي.

څوک به داسې لیوني وي چې ووایي: هو، بلکې په نفي سره به ځواب کوي، ځکه چې دا محاله او ناممکنه ده چې په یو محال کې دې په یو ځای کې زلزله هم وي او زلزله دې نه وي هم، په ایکي یو وخت کې دې په ایکي یو ځای کې هم باران وي او هم دې نه وي. دغه د متافزیک یا ما وراء الطبیعة د فلاسفهٔ نظریه ده چې د ضدینو د اجتماع له پاره نهه شرطونه دي او هغه دا دي:

(۱) د موضوع وحدت (۲) د محمول وحدت

(۳) د مکان وحدت (٤) د زمان وحدت

(۵) د شرط وحدت (٦) د اضافت وحدت

(۷) د جزء او کل وحدت (۸) د فعلیت او قوت وحدت

(۹) د حمل وحدت

نو د ضدینو د اجتماع له پاره دغه نهه واره ضروري دي که چیرې یو هم یکې کم وي هغه ته اجتماع د

ضدینو نه ویل کیږي، چې بل مثال يې د بریښنا د ګروپ دی. هغه ته د رڼا له پاره د دوه مزي غځولي شي چې یو ته يې منفي ویل کیږي او بل ته مثبت. اوس نو که یو څوک د غه مزي په یو سیم و پیيي او بیا ووایي چې دا دی اجتماع د نقیضینو راغله، نو دا غلطه ده چې ایکي یو سیم هم مثبت شي او هم منفي شي.

په دې باره کې به لسګونو مثالونه شته مګر زه به همدې بس والی کوم.

## پنځمه خبره:

# پر شعور باندې د مادې د وړاندې والي قانون

د دیالکتیک ماتریالیزم پنځمه نظریه او فرضیه پر شعور باندې د مادې وړاندې والی دی. د غه خبره که څه هم د هیګل د ایډیالیزم په مسلک کې د لومړي ځل له پاره مطرح شوه چې آیا شعور مقدم دی که ماده؟ مګر هیګل او د هغه شاګرد زینون قبرسي له دې سره سره پر دې ګروهن وو چې شعور د عالم پر موجودو آشیا وو د پوهې او علم میچا نی دی. مګر د

د نولسمې مسيحي پېړۍ په نيمايي کې د هيګل د مسلک په تحريفو لوسره د انګلز په ملګرتيا کارل مارکس په دې اړوند خپلو پلويانو ته دا فکر ورکړچې ماده پر شعور باندې مقدمه ده ، ځکه چې شعور د محيط د تاثير او د تولیدي وسايلو زېږنده ده . همدغه اجتماعي او اقتصادي توليدي شرايط دي چې شعور پيدا کوي او که دغه دواړه نه وي شعور به نه وي، نوله دې امله چې توليدي ذرايع ماده ده ، پرشعور يې وړاندې والى ثابت شو.

**رد :** مخکې له دې څخه چې د ماترياليستانو دغه فرضيه رد کړم ، ښه به داوي چې لومړی ماده اوشعور تعريف کړم ، څو درنو لوستونکو ته معلومه شي چې ماده څه شي او شعور څه شی دی؟

**شعور:**

شعور عربي کلمه ده او په عربي ژبه کې د شعور لغوي تعريف داسې راغلی دی :

« اَلاِدْرَاکُ بِلاَ دَلِيْلٍ » يعني له دليل څخه پرته دیو شي په ذهن کې ميندل . دغه راز د شعور بل نوم احساس دی . او د علم النفس دعلماؤ په نزد د شعور اصطلاحي تعريف داسې شوی دی :

اَلشُّعُوْرُ : يطلق على العلم بما في النفس اوبما في البيئة،

وعلى ما يشتمل عليه العقل من ادراكات ووجدانيات ونزعات . ولذا قالو: إن للشعور ثلاثة مظاهر هي : الادراک ، والوجدان ، والنزوع ."(۱)

ترجمه: د شعور اطلاق پر هغه علم باندې کولی شي چې په بدن او جسم کې وي او یا پر هغه علم باندې چې په محیط او چاپېریال کې وي او پر هغو ادراکاتو باندې هم چې په عقل کې وي او پر وجدانیاتو او ذهني خځوبو (تراوشاتو) باندې هم . له همدې کبله پوهانو ویلي دي : شعور درې مظاهر لري : ادراک، وجدان او نزوع .

مطلب دا چې شعور پر ګردو عقلی ادراکاتو، وجدانیاتو او نزوعاتو باندې اطلاق کېږي .

ځینو پوهانو شعوردا سې تعریف کړی دی :

**شعور:** پوشي ته د ذهن له چټکی یا ملرنې او بشپړ درک کولو د هغه شي څخه عبارت دی .

**وجدان:** له وجود څخه دی چې لغوی معنا یې ده : د هر ورک شوي شي میندل . او په اصطلاح کې : کله چې ذهن په خپل ځان کې د مفاهیمو او تصوراتو په لټه کې شي او هغه بیا مومی دې ته وجدان ویلی شي .

---

(۱) المعجم الوسیط ، ج ۱ ، ص ٤٨٤ - ٤٨٥ - المختار من الصحاح ، ص ۲٦٩ .

**ادراک:** له درک څخه مأخوذ دی، چې په لغت کې دیو شي میندلو ته ویل کېږي او یو شي ته رسېدلو ته هم ویلی شي او د حکماؤ په اصطلاح کې: هر ډول حسي او ذهني میندلو ته ویل کېږي.

**تصور:** په ذهن کې دیو شي صورت او بڼه جوړول دي او د هغه موجودوالي ته تصور ویل کېږي، او جمع یې تصورات راځي.⁽¹⁾

**عقل:** هغه د ماغي او ذهني قوه ده چې د آشیاؤ حقیقت لاس ته راوړي⁽²⁾ او حکماوو د عقل له پاره پینځه ډولونه او مراحل ښودلی دي:

(1) **عقل هیولائي:** په دغه مرحله کې عقل صرف استعداد وي او په خپل ذات کې د هیڅ صورت نقش کولی نه شي او د هغه ماشوم په څېر وي چې صرف دلیک لوست استعداد لري او په عملي ډګر کې یې یلی کولی نه شي.

(2) **عقل بالمُلکَه:** په دغه پړاو کې عقل له مطلق استعداد څخه بهر کېږي او دلومړنیو معقولاتو ادراک تر لاسه کوي. او د حکماوو په اصطلاح کې لومړنی

---

(1) فلسفهٔ علوم، ص ٤١- ٤٢ - فرهنگ عمید ج ٢، ص ١٣٠٧

(2) معجم الوسیط، ج ٢، ص ٦١٦ ، المنجد، ص ٣٩١.

معقولات هغو مقدماتو ته ویل کېږي چې دهغو په مرسته تصدیق مینځته راځي او عاقل پرې باندې پوهېږي، لکه چې وویل شي: کلام له کلیمې څخه لوی دی.

(۳) **عقل بالفعل**: په دغه پړاو کې عقل دېر لومړني معقولات ترلاسه کړي وي او ثانوي معقولاتو ته رسېږي او له دې کبله چې بالفعل په هغه کې معقولات موجود وي نوځکه ورته بالفعل عقل ویل کېږي. او په دغه پړاو کې عقل دهغه ماشوم په څېر وي چې لیکل کولی شي او هر وخت چې وغواړي هغه انجاموي.

(٤) **عقل بالمستفاد**: په دغه پړاو کې عقل نظري گرځېږي او د فلاسفهؤ په اصطلاح کې عقل مطلق ورته ویل کېږي. او له دې کبله چې کولی شي چې له عقل فعال څخه استفاده وکړي او معقولات ترلاسه کړي، نوځکه عقل بالمستفاد ورته ویل کېږي.

(۵) **عقل فعال**: دغه عقل ته فلاسفه لسم هم وایي. هغوی وایي: عقل فعال د گردو بشري پوهنو چورلیځ او مصدر دی. عقلیه صورتونه او د دې عالم ټول حقایق په عقل فعال کې موجود دي. عقل فعال د بنیادم دعقل په پرتله د ومره لوی دی لکه د لمر ستر که چې زمونږ له سترگو څخه لویه ده. د انسان دعقل ارتقاء له قوة څخه

فعل ته او د کمالاتو حصول او راز راز علوم د عقل فعال په وزله دي . (۱)

خلاصه دا چې شعور د ګړدو عملي نخچو، اقداماتو او انقلابونو مرکز دی. لومړی په شعور کې د هر شي نخچه جوړېږي او بیا له هغه څخه وروسته په عملي ډګر کې پلي کېږي.

## مـــاده :

ماده عربي کلمه ده چې په انګریزي ژبه ود کې (MATAR) ورته ویل کېږي . په عربي ژبه ود کې د مادې تعریف لغت پوهانو داسې کړی دی :

« اَلمَادَّةُ : كُلُّ شَيءٍ يكون مَدَداً لغيره. و كُلّ جِسْمٍ ذي امتداد ووزن، ويَشْغَلُ حَيِّزاً من الفراغ . وَمَادَّةُ الشَيءِ . اُصُولُه وعناصره التى منها يَتَكَوَّنُ، حِسِّيةً كانت اومعنوية ، كمادة الخشب ومادة البحث العلمى. وجمعها موادّ.» (۲)

ماده : هر هغه شي ته ویل کېږي چې د بل شي له پاره مرستندوی وي . او هر هغه جسم ته ماده ویل کېږي چې وزن او امتداد لري او ځای او فضاء نیسي او خالي ځای اشغالوي. او د یو شي ماده د هغه بنیادونه

---

(۱) مبادي فاسفه، ص ۵۸ ، فلسفه اسلامی ص ۳۵۷ په لنډیز سره .
(۲) کلیات ابی البقاء، ص ۳٤۸ - معجم الوسیط ج ۲، ص ۸۵۸ ، المنجد ص ۷۵۱ ، فرهنګ عمید ، ج ۲ ، ص ۱۷۲۳ .

او هغه عناصر وي چې له هغه څخه هماغه تکوین او جوړولی شي . برابره خبره ده که هغه مرکب شی حسي اولیدونکی وي او که معنوي وي ، چې د حسي مثال لرګی دی او د معنوي مثال علمي څېړنه او بحث دی او د ماده جمع مواد رادرومي .

یعنې ماده د یو شي بنسټ ته ویل کېږي او د یو شي بنسټ هغه ته ویل کېږي چې قوام او جوړښت یې پرې باندې راځي . او د فزیک د علم په اصطلاح کې ماده هغه شي ته ویل کېږي چې فضاء اشغالوي او وزن ولري، او دا ممکنه ده چې جامده هم وي، لکه لرګی ، تېږه ، او سپینه او داسې نور او مایع هم وي، لکه اوبه ، شیدې ، تېل او داسې نور څیزونه واخله .

د اوو د شعور او مادې هغه تعریفونه چې پخوانیو فلاسفه ؤ او اوسنیو لغت پوهانو او مسلکی اشخاصو کړي دي . اوس به د ماتریالیزم د پلویانو او کمونستانو دا خبره رد کړو چې ماده پر شعور باندې مقدمه ده ، او د هغوی په نزد د دغه کُلیه قاعده ده ، مګر وګورو چې دوی په دې باره کې څومره رښتوني دي او د کمونستانو دا خبره حقیقت لري او که څنګه .

(۱) د هیګل او مارکس دلیلونه مونږ ذکر کړل چې هغوی وایي د شعور زېږنده له دوو څیزونو څخه کېږي : یو له

محیط څخه او دویم د اقتصاد له تولیدي وسایلو څخه،
مگر د دوی دغه دواړه خبرې غلطې دي، ځکه:
که چېرې د محیط او چاپېریال اغېزه او تاثیر د شعور
پیدا کوونکی وي، نو کارل مارکس خود بریتانیا په متمدن
ښار لندن کې اوسېده، باید د ده ذهن او شعور د هماغه
مادرن محیط او مرفه ټولنې په څېر وای، د بدایانو
او سوکاله انگرېزي وگړو په څېر د بورژوازانو، فقر او بېچاره گیو
دښمن وای. مگر ده خو بیا په هماغه مرفه چاپېریال
کې د بورژوازانو په ملاتړ خپله مبارزه د بورژوازانو او فیوډالانو
پر ضد باندې اعلان کړه. د پرولتاریا د پاڅېدو قیادت
او مخکښي یې کوله، نه د شتمنو، عیاشو، د کارخانو او
ځمکو د څښتنانو.

(۲) دغه ران دویم دلیل یې هم باطل دی، ځکه چې
په چین، روسیه او یوگوسلاویا کې کمونستي پاڅونونه
او انقلابونه هغو مزدورانو بریالي کړل چې په خورا پیاوړو
وسله پېژنو ټولنو کې وو او د څو اکمن اقتصاد په ماحول
او چاپېریال کې یې ژوند کاوه. د اقتصاد تولیدي
وسایل، لکه: ماشینونه، کارخانې، وسله او سرمایه په
اوچته پیمانه وو. د دوی ذهنونه او شعور هم باید هماغه
ډول وای، مگر هغوی خو د هر هغه څه پرخلاف پاڅون
وکړ او د هغوی د تباهۍ او له منځه وړلو له پاره یې ملا

وتړله چې اقتصاد یې تولیداوه او پانګه والی نظام یې تالا تر غه کړ. ورځې یې ماړه نه کړل، بلکې ماړه یې وږي کړل او د خپلو شعارونو پر خلاف یې عمل وکړ.

(۳) دغه راز په دنیا کې که څوک یو کارکوي او د یو مادي شي د جوړولو هوډ ونیسي، نو په دنیا کې تر اوسه پورې داسې نه دي شوي چې لومړی هغه شی مینځته راغلی وي، بیا له هغه څخه وروسته یې د هغه شي فکر کړی وي. په خپله کمونستي انقلاب ونه لومړی د هغوی مخکښانو د هغه نقشه جوړه کړې بیا له هغه څخه وروسته انقلاب را ولې. (۱)

په افغانستان کې د ثور توره او خونړه کودتا چې کله په ۱۳۵۷ هجري لمریز کال خلقیانو او پرچمیانو د روسانو په ملاتړ وکړه، نو د غه د کودتا د نخچې جوړولو له پاره په کابل کې د روس په سفارت کې د هغه وخت روسي سفیر مارشال استینوف د کمونستانو مشرانو تره کی کارمل، حفیظ الله امین او نور وغوښتل، نخچه یې ورته جوړه کړه او بیا دوی کودتا وکړه. په داسې حال کې چې هیڅوک هم خبر نه وو چې دوی جنایت دسورلنډیانو

---

(۱) المارکسیة و الاسلام، ص ۳۶، حوار مع الشیوعیین فی أقبیة السجون ص ۰۷۸

په هدايت دتکو ين په درشل کې دي . هرڅه په خپل خپل ځای وو، د سردار محمد داؤد حکومت د پرمختګ او دهېواد په تطور کې بسياو او په دې فکر کې و چې د سور روسي خرس له پليتو شکېلا کې منګولو څخه ځينې خپل اسلامي هېواد ګران افغانستان وژغوري او د کا ، جي ، بی له لومو څخه ځان خلاص کړي ، چې نابېره پلان شوې کودتا د روسي ديکتاتور بريژنيف په بولټه پېل شوه او د سپېڅلو وينو د ويالو په بهولو يې دافغانستان عزونه او دامانونه سره کړل .

(٤) دغه راز کله چې فارمسست کوم درمل جوړوي او دکوم مخصوص د ول مخصوصې ناروغۍ له پاره ، نو آيا لومړی دهغه ميټريل تياروي بيا وروسته له هغه څخه په خپل ذهن کې دهغه فرمولې جوړوي او که لومړی دهغه درمل فرموله جوړوي او د ترکيبي درمل داجزاوو او دهغه دترکيب فرمول جوړوي ، بيا وروسته له هغه څخه دهغه ميټريل جوړ کړي اوراغونډ يې کړي او بيا درمل ورڅخه جوړ کړي ؟

معلومه خبره ده چې لومړی په ذهن او شعور کې دهغه فرموله جوړولی شي او ترکيبي اجزاء ترتيبولی شي او بيا له هغه څخه وروسته دواء ورڅخه جوړولی شي . داهيڅوک هم چې په سد وي او عقل لري نه قبلوي چې لومړی درمل جوړ

شي بيا له هغه څخه وروسته په ذهن کې د هغه اجزاء او د جوړولو طريقه برابروي ، څکه چې لومړی د رمل جوړ شي بيا وروسته له هغه څخه په فکر او شعور کې د فارمولې ادراک هيڅ گټه نه لري . او نه تر او سه پورې داسې شوی دی . لکه څرنګه چې ماتريالست کموسنتان وايي چې ماده پر شعور مقدمه ده . د دوی له دغه قانون سره سم خو بايد داسې وي چې لومړی د رمل موجود وي بيا دې شعور د هغې اجزاء تجوين کړي ؟!!

(۵) په صنعت کې هم پر شعور باندې د مادې د وړاندې والي د نظريې په تر د يد کې په لسګونو مثالونه موجود دي چې تر ټولو ساده مثالونه يې د غاليو او بيا د رختونو د جوړولو اختلاف ، د درزيو او خياط د کاليو ډيزاينونه او داسې نور دی . هر صنعت کار د خپل صنعت مختلف ډيزاينونه لومړی په خپلو اذهانو کې نخچوي او بيا يې د جوړولو په مهال کې پلي کوي . داسې هيڅکله نه دي شوي چې لومړی ډيزاينونه جوړ او مينځته راشي او بيا له هغه څخه وروسته د هغوی نخچې په ذهن کې تيارې کړای شي .

همدغه ډول روښانه دليلونه په بيالوژي ، فزيک تولن پېژندنې او نورو علومو کې په لسګونو ، بلکې په سلګونو او زرګونو موجود دي ، چې د کموسنتانو دغه واهي

او له حقیقت څخه لرې مضحکه خېزه نظریه رد کوي چې وایي ماده پر شعور باندې مقدمه ده او دا کلي قانون دی.

په هر صورت مونږ مسلمانان دا عقیده لرو چې شعور خپل مقام لري او ماده خپل مقام لري او دا هېڅکله نشي کېدلای چې ماده اصل او شعور د هغې فرع او تابع وګرځي او یا شعور مصدر وګرځول شي، خو شعور پر ماده باندې افضل دی چې د هغې د تطویر او سنبه استعمال له پاره کټورې کرنچارې او پرنامې تجویزوي او ورسپي ماده ده چې د شعور تیاره کړې نخچه په عملي ډګر کې پلې کوي. (۱)

په ادبي ډګر کې کمونستانو د خپل د غه سفسطي اصل د ذکر کولو مطلب دا دی چې په حروفو او کلماتو کې مطلب ذکر کولی شي او بیا له هغه وروسته هماغه مطلب په شعور کې ترسیمولی شي، چې د هغو دغه خبره څومره له حقیقت څخه لرې ده؟ ان تردې چې یو انیږ به هم دا قبوله نه کړي او یورې و به خاندي او د لېوني باور به پرې وکړي.

---

(۱) التضلیل الاشتراکی، ص ۱۱۲، مصنف: دوکتور صلاح الدین المنجد.

# آیا
# شعور یوازې د انساني دماغ ځانګړنه
# ده او که نور ژوي هم شعور لري؟

ځینې د الحادی او غیر اسلامی فکر خاوندان، چې په سرکې یې د کمونیزم پیروان دي، په دې نظر دي چې شعور یوازې او یوازې د انساني دماغ ځانګړنه ده، شعور له دماغ نه کله هم بېل نه دی او د شعوردو دې او پوخوالي په نتیجه کې ژبه مینځ ته راغلې ده.

مخوی که په علومو او فلسفه کې د برلیز معلومات هم لري په دې باندې پوهیدلي وای چې شعور یوازې انسان نه، بلکې ځاروی یې هم لري؛ ځکه همدغه شعور دی چې ځاروی پرې ځانونه له هلاکت څخه ژغوري. همدا شعور دی چې ځاروي په ګړنګ کې له غورځېدو څخه، له خپل پیاوړي دښمن لکه پړانګ، زمري او نورو څخه ځان ساتي او دغه په منګولو کې له غورځېد و څخه د تېښتې په وزله د خلاصون هاند او هڅه کوي. د شعور په وزله د خوراک، څښاک شکل کوي، مګر دومره خبره ده چې شعور یو ثابت ادراک نه دی، بلکې متزلزل ادراک دی، لکه چې ابوالبقاء متوفی ۱۰۹۴ هجری په خپل کلیات کې شعور داسې تعریف کړی دی:

« اَلشُّعُوْر : إِدْرَاكٌ مِن غيرِ إِثْبَاتٍ فكأنّه ادراک متزلزل ». (۱)

شعور: غیر ثابت ادراک دی ، ګواکې شعور یو متزلزل ادراک دی .

همدغه لامل دی چې څاروي او نور ژوي کله نا کله زیانمن څیز د خپل ځان په باره کې ګټور او ګټور څیز زیانمن وانګېري. په همدغه اساس تفسیر پوهانو او علماوو د «علم» او «شعور» او د «عقل» او شعور ترمینځ توپیر کړی دی او داسې یې ویلي دي:

« اَلْعِلْمُ : معرفة المَعْلُوْمِ عَلَىٰ مَا هُوَ بِهِ ». (۲)

یعنې علم د یو شي په اصلي حقیقت او ماهیت سره پېژندل دي.

یعنې د هر یو شي په هغه توګه پېژندل دي چې پکې موجود وي. د مثال په ډول د انسان په هغو مواصفاتو پېژندل چې په انسان کې په بېنځیزه توګه ودیعت او ځای پر ځای کړای شوي دي.

او د عقل تعریف پوهانو د شعور له تعریف څخه جلا کړی دی لکه چې علامه تفتازاني متوفي ۷۹۱هـ په خپل کتاب «شرح المقاصد»

---

(۱) کلیات ابي البقاء ، ص ۲۱۸ .

(۲) تفسیر قرطبي ، ج ۱ ، ص ۱٤٤ .

کې د عقل تعریف داسې کړی دی :

«اَلْعَقْلُ: قُوَّةٌ بِهَا يُمَيَّزُ بينَ الْأُمُوْرِ الْحَسَنَةِ وَالْقَبِيْحَةِ» (۱)

عقل: هغه قوه ده چې په هغه سره د ښو او ناوړه شیزونو تر منځ توپیر کولی شي.

او ابو البقاء په خپل کلیات کې د عقل په تعریف کې داسې ویلي دي :

«اَلْعَقْلُ : اَلْعِلْمُ بِصِفَاتِ الْأَشْيَاءِ مِنْ حُسْنِهَا وَقُبْحِهَا وَكَمَالِها وَنُقْصَانِهَا» (۲)

یعنی عقل هغه قوه ده چې د هغه په توسه د شیزونو ښه والی او بد والی، بشپړ والی او کموالی معلومولی شي.

په هر صورت د منطق، فلسفې او علم الکلام له نظره عقل له هغو پنځه گونو حواسو څخه یو حس دی چې الله تعالیٰ په دماغو کې ځای پر ځای کړی دی او هغوی ته باطني حواس ویلی کېږي.

او داهم گرد و پوهانو ویلي دي چې شعور عام دی په گرد و ناطقو او غیر ناطقو ژویو کې موجود دی،

---

(۱) شرح المقاصد، ج ۱، ص ۲۳۶.

(۲) کلیات ابي البقاء، ص ۲۴۸.

مګر عقل هم یوازې او یوازې په انسان پورې مختص نه دی بلکي په عقل کې دځمکی پر مخ له انسان سره یوبل مخلوق هم شریک دی چې هغه ته د پېریانو یا جناتو عالم ویل کېږي، چې وروسته به یې په ځانګړې څېرکي کې یادونه په تفصیل سره وشي.

د پورتني بحث خلاصه داده، چې شعور یوازې دانسان صفت نه دی، بلکې په ټولو ژوندیو سرو کې دشعور قوه موجوده ده. او دکموستانو دا نظریه غلطه ده او هیڅ عقلمند یې نه مني چې وایي: شعور صرف په انسان کې دی او بل هیڅ ژوندی سری یې نه لري؟!

بلکې ځینو پوهانو خوله شعور سره حیواناتو کې دعقل په موجودوالي هم کروهمند دي.

# دځمکې پر مخ دانسان له پیدا ینبت څخه دمخه هم ژبه موجوده وه

دکفري او الحادي نظر خاوندان عقیده لري چې د شعوري غږونو او اشارو پرځای دخاصو آوازونو (چې دوی یې فونیمونه « Phonemes » بولي) درامنځته کېدو په نتیجه کې انسانانو ژبه جوړه کړې او را منځ ته کړې ده.

ددوی دا نظریه هم بې اساسه او دکمونستی اوالحادی غلوونکو او بې لاري کوونکو طاغوتی نظریو او فرضیو څخه ده. دوی عقیده لري چې ژبه یوازې او یوازې دانسان خاصه ده او دوی را منځته کړې ده. دوی به دې نه پوهېږي او یا له حقیقت څخه سترګې پټوي چې دځمکې پر مخ له انسان څخه پخوا یو بل مکلف او مجسم مخلوق الله تعالیٰ پیدا کړی و چې عقلمند او د خبرو کولو آوازونو څښتن و، او تر او سه

هم شته بلکې تر قیامته پورې به په ځمکه کې وي.
هغوی خپله ژبه لري، ګرځي او ځانګړي ادبیات لري.
د غه مخلوق جنات (پېریان) دي، چې کمونستان
او د غیر اسلامي، الحادي فکر خاوندان یې له وجود څخه
منکر دي. مګر مسلمانان یې د قرآني احکامو او
نبوي ارشاداتو په رڼا کې پر موجودیت باندې ایمان
لري. له همدې کبله لازمه ګڼم د خپل اسلامي توکوم
د خبرتیا په خاطر او د ملحدینو او غیر اسلامي افکارو
د خاوندانو د سفسطې د تردید له پاره دلته په
یو ځانګړې څپرکي کې د پېریانو په هکله د قرآن
کریم او نبوي احادیثو او د اسلامي امت د فقهاوو د
اقوالو په ذکر کولو سره څه نا رڼا واچوم:

# پیریان

پیریانو ته په انګرېزۍ کې ګوستس GHOSTS وییل کېږي
په پښتو کې ورته پېریان او یو ته یې. پېری وییل کېږي.
په عربۍ ژبه کې یې جن بولي ، او یو ته یې «جنّي» وییلی
کېږي. په قرآن کریم کې په (۲۹) سپاره کې یو خاص کړې
سورت «د سورة الجن» په نوم نازل کړی شوی چې مکي
سورت دی.

په دغه سورت کې د ملحدینو او غیر اسلامي افکارو د خاوندانو
د نظر او عقیدې خلاف د «جن» آواز وینا او خبرې نقل شوې
دي ، او هغوی د قرآن کریم له اورېدو وروسته
بېرته خپل قوم ته ستانه شول او هغوی ته یې د اسلام
د قبلولو دعوت ورکړ او داسې یې ورته ویلي وو :

« اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ۝ يَّهْدِيْٓ اِلَى الرُّشْدِ
فَاٰمَنَّا بِهٖ ۭ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ اَحَدًا ۝ وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰى
جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ۝ وَّاَنَّهٗ كَانَ
يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ۝ » (۱)

---

(۱) د الجن سورت ، ۱-۲-۳-٤ آیاتونه ، ۲۹ سپاره ، ۷۲ سورت.

ترجمې نو د وی نور و خپلو قومیانو ته وویل : ښځکه موږ واورېده قرآن ، چې په اعجاز، بلاغت او فصاحت کې بې سیاله عجیبه دی، سمې لارې ته ښوونه کوي، نو موږ ایمان پرې راوړ او هېڅکله به موږ وروسته له نن څخه له رب زموږ سره بل هیڅوک هم شریک نه کړو او بېشکه شان دا دی چې لوی دی رب زموږ، نه یې ښځه نیولې ده او نه اولاد، او بېشکه زموږ ناپوهانو او بې عقلانو به دې اړوند په الله تعالیٰ باندې دروغ تړل .....

د پیریانو له دغه کلام څخه همدارنګه د احقاف په سورت کې چې د هغوی د ایمان راوړلو د دعوت کوم ذکر راغلی دی نه یوازې دا ثابته شوه چې خبرې کوي، بلکې په ادبي فنونو او صنعتونو کې هم بشپړ مهارت لري، لکه چې په تفاسیرو، د سیرت او تاریخ په کتابونو کې د پیریانو د شاعرانو او ادیبانو قصیدې او نور شعرونه ذکر کړای شوي دي.

له رسول الله صلی الله علیه و سلم سره د هغوی د ایلاګو سره او خبرې اترې په تفاسیرو کې راغلي دي. له ډېرو صحابه کرامو سره د هغوی خبرې کول راغلي دي. د حضرت سلیمان علیه السلام په دوره کې چې په ۹٤٥ قبل مسیح وه د پیریانو د انجینرانو او ارتیستانو په لاسونو د تمثالونو، .... لګښتونو او کلاګانو جوړول په قرآن کریم کې د هغوی مکالمې ذکر دي او د هغوی

مکالمې یکې راغلې دي.

**تعریف:** د امام راغب اصفهانی متوفی سنه ۵۰۳ھ په خپل کتاب مفردات القرآن کې د جِنّ د لفظ لغوي تعریف داسې کړی دی:

«اَصْلُ الْجِنِّ: سَتْرُ الشَّیْءِ عَنِ الْحَاسَةِ» (۱)

یعنې د جن لغوي معنا له لیدلو او نظر څخه د یو شي پټېدل او اونیا کېدل دي، چې له همدې کبله د مور په ګېډه کې ماشوم ته هم ځکه جَنِین ویل کېږي چې له نظر څخه پټ وي او زړه ته هم ځکه جَنَانْ وایي چې په سترګو نه لیدل کېږي. دغه راز جنت ته ځکه جنت ویل کېږي چې پرګڼو ونو باندې یې ځمکه پټه وي. نځلې ته ځکه "جُنّة" ویل کېږي چې مستوره وي او لېونۍ ته ځکه مجنون ویل کېږي چې عقل یې له ادراک څخه د ناروغۍ له امله پټ وي، او "دال" ته ځکه "مِجَنٌّ" ویل کېږي چې څښتن یې د دښمن له ګوزار څخه پري پټ وي.

مطلب دا چې په عربۍ ژبه کې هر هغه شي ته جن ویل کېږي چې په سترګو نه لیدل کېږي او له نظر څخه الوتیا وي، نو پېریانو ته هم ځکه جن ویلی شي چې له نظر څخه پټ وي.

**اصطلاحي تعریف:** علامه تفتازانی رحمة الله علیه (متوفی سنه ۷۹۱ھ) په خپل کتاب شرح المقاصد کې د جن داسې تعریف کړی دی:

---

(۱) مفردات امام راغب، ص ۹۶.

«وَالجِنُّ أَجسَامٌ لَطِيفَةٌ هَوَائِيَةٌ يَتَشَكَّلُ بِأَشكَالٍ مُختَلِفَةٍ وتظهر منها افعال عجيبة ، مِنهُمُ المُؤمِنُ والكافِرُ والمُطِيعُ والعَاصِي» (۱)

پیریان نرم جسمونه او پکی لرونکی هوائی مخلوق دی ، په مختلفو بڼو او صورتونو ځانونه بدلوي او له پیریانو څخه اریانوونکي چاري صادرېږي . په پیریانو کې مؤمنان هم شته او کافران هم پکې شته ، په همغوی کې تابعدار هم شته او نافرمانه پکې هم موجود دی .

یعني لکه څرنګه چې په انسانانو کې ښه ، بد ، مسلمان او کافر ، مطیع او عاصي ، فاسق او عابد موجود دي ، دغه راز په پیریانو کې هم شته ، ځکه لکه څرنګه چې بشري ټولنه په عبادت او اطاعت مکلفه ده ، پیریان هم مکلف دي .

## د پیریانو له وجود څخه انکارکول کفر دی

د پیریانو موجودیت یو داسې حقیقت دی چې هیڅوک انکار ورڅخه نشي کولی ، ځکه چې په قرآن کریم کې د دوی په موجودیت ، مکلفیت ، ثواب او عذاب په مجموعي توګه ډیر ځله په اتلسو سورتونو کې ذکر راغلی دی . دغه راز په نبوي

(۱) شرح المقاصد ، ج ۲ ، ص ٥٤ .

احادیثو کې هم د پیریانو موجودیت او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له پلوه هغوی ته اسلامي دعوت ورکول ثابت دی چې پر همدې اساس د اسلامي اُمت فقهاوو، ویلي دي چې د پیریانو له موجودیت څخه څوک منکر شي هغه کافر دی. لکه چې امام ابن حزم ظاهری (متوفی ۴۵۶هـ) په خپل کتاب الملل و النحل کې ویلي دی:

« لما اخبرت الرسل الذین شهد الله عزوجل بصدقهم بما ابدی علی ایدیهم من المعجزات المحیلة للطبائع بنص الله عزوجل علی وجود الجن فی العالم وجب ضرورة العلم بخلقهم ووجودهم وقد جاء النص بذلک وبأنهم أُمة عاقلة ممیزة متعبدة موعودة متوعدة، متناسلة، یموتون واجمع المسلمون کلهم علی ذلک، نعم والنصاری والمجوس والصابئون واکثر الیهود حاشا السامرة فقط، فمن انکر الجن او تأوّل فیهم تاؤیلاً یخرجهم به عن هذا الظاهر فهو کافر مشرک حلال الدم والمال »(۱)

له دې کبله چې د الله تعالی هغو رسولانو د پیریانو پر موجودیت مونږ ته خبر راکړی دی چې د هغوی په رښتین والی الله تعالی شاهدي کړې او په داسې معجزاتو یې د هغوی صداقت ثابت کړی دی چې د هر انسان په وس

(۱) الفصل فی الملل والاهواء والنحل، ج ۴، ص ۱۲.

کې د هغوی راوړل په پنځیز ډول محال دی، نو د پیریانو پر موجود والي باندې ګروهه لرل او باورکول واجب دی، ځکه چې په دې باره کې شرعي نصوص راغلی دی چې پیریان یو ځانګړی عقلمند اُمت دی، د الله تعالیٰ عبادت کوونکی دی په اطاعت کولو د جنت وعده ورکړی شوې ده او په معصیت کولو د جهنم وعید ورکړای شوی دی. پیریان نر کمیز او نسل لرونکی مخلوق دی، هغوی مړه کیږي.

نو له همدې کبله د پیریانو پر موجودیت باندې د اسلامي اُمت اجماع ده. دغه راز نصرانیان، مجوسیان او د یهودیانو له ایکي یوې سامریه فرقې څخه پرته نور ټول یهودیان هم د پیریانو پر وجود او مکلفیت اعتراف لري. لوږ هغه څوک چې د پیریانو له وجود څخه انکار کوي او د هغو په باره کې په نازل شویو آیاتونو کې داسې تاویلونه کوي چې د آیت له ظاهري معنا څخه یې اړوي او له ښکاره دلالت څخه یې ګرځوي، نو داسې وګړي کافر او مشرک مال او سر یې مؤمنانو ته روا دي.

دغه راز امام باقلانی، علامه شبلی حنفی، شیخ الاسلام ابن تیمیه، علامه دُمیري او نورو د پرو عالمانو ویلي دي چې د پیریانو له موجودوالی او مکلفیت څخه انکار کول کفر دی، او د هغوی له خبرو اترو، تولد او تناسل څخه هم انکار کول کفر دی ځکه دا هرڅه په قرآنی نصوصو سره ثابت دي.

دا خو لا څه کوي چې پیریان، ملایک او شیاطین خبرې کوي د سائنس په دورکې چې مونږ ژوندکوو، اوسپنې هم خبرې کوي او بیلګې یې هم موجودې دي چې یو وه یې دلته په لنډه توګه در پیژنو :

## روبوټ:

که څه هم روبوټ انساني صنعت او تخنیک دی، مګر هغه داسې عیارکړای شوی دی چې کټ مټ د انسان په څېر خبرې کوي، پوښتنې کوي او د پوښتنو ځوابونه وایی، لارښوونې کوي او خبرتیا ورکوي.

## کمپیوټر:

دویمه بیلګه یې کمپیوټر دی. سره له دې چې کمپیوټر د روبوټ په څېر د اوسپنیزو پرزو مجموعه ده، مګر کله چې پر هغه باندې پروګرام چلوونکی خطاء شي، نو ورته وایي غلط شوې، ان تردې چې غوصه ورته کوي او د روبوټ په شان چلوونکی تهدیدوي او د ضرورت په صورت کې لارښوونې ورته کوي.

# پر ځمکه باندې دانسانې ژوند تاریخ

د اسلامي تاریخ پوهانو د څېړنو له مخې پر ځمکه باندې دانسان د میشت کېدو تاریخ له یو کروړ څخه ډېر کم کلونه شوي دي او لویدیځو غیر اسلامي څېړونکو بیا ډېر لږ شوي دي، په داسې حال کې چې کمونستان او سیکولرستان د غربیانو قول داسې قبلوي لکه څرنګه چې مسلمانان آسماني وحې په پټو سترګو مني.

د امریکا د پنسلفانیا په پوهنتون کې د تطبیقي ریاضیاتو دبرتانیه نامتو استاد او متخصص پروفیسر جینس JYNE د کاڼو د تاریخ په اړوند د ۱۹۲۸م کال د مارچ په اوومه نېټه یو رپوټ خپور کړی وچه خلاصه یې داده:

د ځمکې په جوړېدو او د هستوګنې لپاره د جوړه کېدو دوه زره میلونه (دوه ملیارده، دوه سوه کروړه) کلونه تېر شوي دي.

یعنې له هغه وخت څخه چې الله تعالی ځمکه د هستوګنې جوګه کړې ده تر اوسه پورې دوه زره میلونه ـ دوه اربه یا دوه ملیارده کلونه پکې تېر شوي دي.

# د لمر عمر

داسې اټکل کېږي چې د لمر پر پيدا ايښت او فعاليت باندې تر اوسه پورې لس زره ميليونه (لس ملياره) کلونه تېر شوي دي. او امکان لري چې په همدغه بڼه باندې پر ته له دې چې رڼا يې نته شي، يا بېخي ختمه شي، په ميليونونو کلونو نور هم دوام وکړي.

يعنې له هغه تاريخ څخه چې لمر الله تعالیٰ پيدا کړی دی تر اوسه پورې د ساينسي څېړنو په رڼا کې په اټکليزه توګه لس اربه کلونه پرې تېر شوي دي او د الله تعالیٰ په امر تر اوسه خپلې دندې ته داسې دوام ورکوي چې د لس زره ميليونه کلونو په تېرېدو سره اوس هم دده په دنده کې د پرلږ کمبوت هم نه دی راغلی او نه يې په رڼا کې کوم توپير راغلی دی، بلکې لکه څرنګه چې يې د پيدا کېدو په لومړي تاريخ کوم توداوالی، شعاع او رڼا لرله د لس زره ميليونه کلونو له تېرېدو څخه وروسته اوس هم په هماغه شان توداوالی، شعاع او نور لري. او دا هر څه ديوقادر او حکيم الله تعالیٰ په حکم سره دي، نه کوم تخنيکي پرزه يې لګېدلې ده او نه دا او يو له کوم ډيم سره کنکشن لري، چې زياتوالی او کموالی پيکې راشي.

# دلمرسترګي غټوالی

د ځمکې په پرتله د لمر سترګه د حجم په لحاظ درې سوه زره (درې لکه) ځله غټه ده او ځمکه په پلن والي او حجم کې لمر ته دومره کوچنۍ ده لکه د سال (ریګ) یوه کوچنۍ دانه چې د ټولې ځمکې د کرې په اندول وړه ده.
یعنې د لمرسترګه دومره غټوالی لري لکه درې سوه ځلې د ځمکې غټوالی او پلن والی چې وي، چې نظر د لمر سترګې غټوالي ته ځمکه داسې ده لکه چې د ځمکې د غټوالی په پرتله یوه کوچنۍ شګه وي. او دغه د لمرسترګه د هغو دېرش زره میلیونو عظیمو کائناتو له جملې څخه یو عظیم کون ګڼلی شي چې په کروي فضاء کې چورلیږي او وړیا ول شوې دندې سرته رسوي. د اختېره د نجوم د علم مشهور غربي ماهر او محقق علامه سیریز کړې ده او بیا یې ویلي دي: دغه لمر چې پر مونږ باندې طلوع کوي او راز راز ګټې ور څخه اخلو د هغو دېرش زرو عظیمو کائناتو له مجموعې څخه د نور و په پرتله له خپلو توابعو سره یوه کوچنۍ مجموعه ده. او نورې ټولې مجموعې د لمر له سترګې څخه دومره غټې دي لکه څرنګ چې زمونږ د غه دلمرسترګه له ځمکې څخه غټه او لویه ده، په داسې حال کې چې د وا ټن

دلرې والي له کبله مونږ ته کوچنۍ ښکارېږي.

## دلمر د وړانګو (شعاعو) اونور وړځني لګښت :

دلمر سترګه هره ورځ په هره دقيقه کې دوه سوه پنځوس (۲۵۰) ميليونه ټنه ماده دخپلو وړانګو اوشعاعو په وزله له لاسه ورکوي چې په مجموعي توګه هره ورځ درې سوه شپېته (۳۶۰) زره ميليونه ټنه ماده مصرف کوي.
يعنې دالله تعالیٰ دغه عظيم موجود چې مونږ لمر ورته وايو، دخپلو انوارو اوتجلی، تودوخې اورڼا ورکولو غلو- دانو، مېوو او شينيلو دودې اوپخولو، ژوو تر دوبيا- من نې ورکولو په خاطر په ايکي يوه ورځ کې درې لکه شپېته زره ټنه ماده مصرف کوي چې په يوه مياشت کې درې سوه اتلس (۳۱۸) لکه ټنه کېږي. دغه راز په هره مياشت کې دڅلوره ميليونه اته لکه ټنه له حساب څخه په يو کال کې يو څلوېښت — شپږ لکه ميليونه ټنه کېږي. او دلمر عمر لس زره ميليونه کلونه دی چې که ددغو ټولو کلونو دلمر دړنا لګښت وشمېرل شي نوشمېرې به ميليا ردونو او اربونو لکو ټنو څخه چې کروبونو لکه ټنو ته رسېږي اوله دومره لوی لګښت سره سره دده په تاوډ، رڼا او وړانګو کې هيڅ دول دېږلږ کموالی هم نه دی راغلی او اوس هم دخپلې لومړنۍ ورځې په شان

ځلانده، سوځانده او نوراني دی، او دالله تعالی مخلوقات
راز راز ګټې ورڅخه اخلي، ان تر دې چې اوس څو د
برېښنا د زېرمه کولو مرکزونه هم ورته جوړکړای شوي
دي چې هر مرکز یې په میلیاردونو ټنه یو برېښنا د هغه
لمر له ځلانده تېکلي څخه زېرمه کوي او بیا ګټې ورڅخه
اخلي . او دا دکائناتو د خالق هغه لویه عطیه او نعمت
دی چې که هر انساني توک او پېریاني توکونه په ځانګړې
ځانګړې توګه برېښنایي زېرمه تونونه هم ورته جوړکړي
بیا به هم په هغه ځواک کې یو پوټی کموالی رانه وستلی شي
او تر قیامته پورې به یې د خپلي لومړۍ ورځې په شان رڼا،
ځلا او تودوخه وي چې نوره کائنات به په مساویانه توګه
ورڅخه مستفید کېږي.

## له لمر څخه لوی ستوري

همدې پورتني یادشوی انګرېز محقق ویلي دي: له لمر څخه
نور واړه او لوی ستوري هم شته . چې غټ ستوري او د هغوی
د غټوالي اندازه یې لاندې د ول اټکل کړای شوي ده :

### د جوزا ستوری :

نوموړی محقق ویلي دی: له لمر څخه تر ټولو لوی ستوری
د جوزا ستوری دی، چې د غټوالی اندازه یې د لمر په نسبت پنځوېشت
میلیونه ځلي زیاته ده. او د دغه ستوري رڼا او نور د لمر په نسبت

د اسې دی لکه د بر ښښنا دلويو چراغونو او مشالونو په وړاندې چې د وړې ډيوې وي.

يعنې دجوزا ستوری په لمر باندې دومره لوی اوغټ دی لکه پنځه ويشت مليونه ځلې چې د لمر غټوالی فرض کړای شي او همدغه راز د جوزا په نور کې هم " د دنيا له لمر ځخه هدومره زيا توالی دی.

## له لمر څخه زيات کوچنی ستوری

نومومړی پروفيسر ويلي دی : له ګرد و څخه کوچنی ستوری «فان مـانن» ستوری دی او د هغه د حجم اوغټوالي اندازه دځمکې په اندوك ده.

### د رڼا په لحاظ :

د رڼا په لحاظ له ګردو څخه تت او کمزوری ستوری «وولف» ستوری دی. او هغه داسې چې دهغه ستوري نور او رڼا د لمر د نور په پرتله شل ځله کمه ده.

مګر د «وولف» ستوري په خلاف «دوراډوس» ستوری زياته رڼا لري او د هغه رڼا د لمر په نسبت درې سوه زره (درې لکه) ځله زياته ده.

### د رڼا سرعت :

د لمر د نور چټکتيا او سرعت په يوه ثانيه کې يو سل شپږ اتيا (۱۸٦) زره ميله دی ، او همدغه ډول سیم لرونکی بریښناهم ده

ځکه چي په جوهر کې د غه دوا ړه سره یو دي .

مطلب دا چې د لمر نور او رڼا — د دغه عالم چې له هغو کروی اجرامو څخه ډک دی چې په مجموعي توګه ایکي یوه دومره لویه کُره ده چې سل زره میلیونه کلونه واټن لري . سره له دې چې له دغه لوی والی سره سره په اوو، ثانیو کې له ځمکې څخه چورلیږي او دې خبرې ته ترجیح ورکړای شوې ده چې د لمر نور له کُروي فضا څخه سل زره میلیو نه کلونه چورلیږي .

# د نورو فلکي اجرامو

## عمر

د نورو فلکي ـ آسماني اجرامو عمر د پنځه زره میلیو نو کلونو څخه تر لس زره میلیونو کلونو پورې دی .

نوانګریز پروفیسور ویلی دی : زه د خپلو مطالعاتو په ترڅ کې دې نتیجي ته ورسیدم چې په ځمکه کې د انسان عمر د ځمکې د عمر په پرتله ډیر ابتدائي دی ، ځکه چې د ځمکې عمر دوه زره میلیونه کاله دی ، په داسې حال کې چې د انسان عمر دری لکه کلونه دی . نو له همدې کبله انسان د کائناتو په باره کې په خپل علم او معلوماتو کې د ماشوم حیثیت لري - نو له یا ملرنه یې خپل خوراک ، مسکن ته ده او له نورو عوالمو څخه ناخبره دی . که څه هم ددې عصر انسان د نورو کائناتو په هکله څه ناڅه معلومات ترلاسه کړي دي ، مګر دغه

معلومات ډېر لږ او ابتدايي دي .

دانسان علم او پوهه د نورو کاڼناتو په اړوند هغه پړاو ته نه دی رسیدلی څومره چې لازمه او مناسبه ده. کېدای شي چې انسان هم په ځمکه کې دومره عمر وکړي لکه څومره چې د ځمکې عمر دی، یعنې دوه زره میلیونه کلونه او راتلونکي انسانان داوسنیو انسانانو په پرتله به دې اړوند زيات پیاوړي او ځواکمن وي. (۱)






---

(۱) تفسیر مراغي، شپږم ټوک، د کهف سورت پای، ۲۷-۲۸-۲۹ مخونه




# پایڅوړ

د کتاب د بیلابیلو څپرکو بحثونو نچوړ د خپلې لیکنې په پایڅوړ کې د دغو لوستونکو ته په لاندې ډول وړاندې کوم:

(۱) ژبه یوه ټولنیزه پدیده نه ده او د اسلام د مقدس دین د ایډیالوژۍ له حکم سره سم ټولې ژبې الله تعالیٰ پیدا کړې دي. او دا چې وخت په وخت بشري ټولنو او یا پېړیانو په خپلو ژبو دونو کې کوم نوښتونه راولي دا هم د الله تعالیٰ له لوري د هغه د ورکړای شویو استعدادونو په نوسه دي چې الله تعالیٰ ځینو توکونو ته ورکړي دي او یا یې ورکوي. او لکه څنګه چې تر قیامته پورې د ژبو پیدا ښت دوام لري او پای ته رسیدلی نه دی، د غه استعدادونه او نوښتونه هم دوام لري او چا ته چې الله تعالیٰ غواړي هغه ته یې ورکوي.

(۲) د ژبو ویش د بشري نړۍ په مختلفو قومونو کې د الله تعالیٰ له غوښتنې او رضامندۍ سره سم شوی دی او له دې څخه وروسته به هم کیږي. په دې کې د انسان د اختیار او واکمنۍ دخل نشته، او دا چې ځینې ملتونه

خپلې ژبې بدلوي دا هم د تقدير مسئله ده او همدغه
ډول ورته ليکلې شوي وي. هيڅوک هم په دې اړوند
خپل چاري نه دي.

(۳) له عربي ژبې څخه پرته چې په نصوصو سره
يې فضيلت ثابت دی، بلېوه ژبه هم پر بلې باندې
غوره والی او فضيلت نه لري، ځکه چې ټولې ژبې د الله
تعالی پيدا ايښت او خلقت دی او د اسلامي شريعت له نظره
په عجمي ژبو کې هغه ژبې ډېرې غوره او له نورو څخه
افضلې دي چې اسلامي دعوت او قرآن او د نبوي سنتو
د خپرونې له پاره زياته استخدام شوې وي او د بشريت
په پنځيزه او سمه لارښوونه کې يې له نورو زياته ونډه
اخيستلې وي.

(٤) د ليک تاريخ پنځه زره کلن نه دی، بلکې له ګردو
کائناتو څخه د مخه و او هغه داسې چې کله الله تعالی د
کائناتو د پيدا ايښت اراده وفرمايله نو نبي کريم صلی الله
عليه وسلم په حديث شريف کې فرمايلي چې له ګردو څخه
لومړی يې قلم پيدا کړ او بيا يې ورته وفرمايل: وليکه!
قلم وويل: ای الله څه وليکم؟ ورته وي فرمايل: د مخلوقاتو
مقادير وليکه. او بيا قلم د الله تعالی له حکم سره سم د ګردو
مخلوقاتو تقديرونه وليکل. د وسعت او حجم له نظره
د هغوی د ندې او عمرونه، د هغوی ګټې او حکمتونه، د

هغوی علویت او سفلویت یا په بل عبارت: لاهو تی، ناسوتي او ددواړو تر مینځ او سول او د اسې نور .

وعن عباده بن الصامت رضی الله عنه، قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: « إن اول ما خلق الله القلم . ثم قال له: اکتب ، فجری فی تلک الساعة بما هو کائن الی یوم القیامة »[1]

( رواه احمد وابو داؤد والترمذي )

دویم قلم دېر ښېښتو دی چې لیک پرې کوي او هغوی ته الله تعالیٰ د انسانانو، پیریانو او حیواناتو د ارزاقو، اجالو، عمرونو او د بنیادم د اعمالو د لیکلو دنده سپارلې ده، او د الله تعالیٰ له حکم سره سم ورته سپارل شوي امور په هغو دفترونو کې لیکي چې په دې اړوند ورسره دی .[2]

دریم د انسانانو قلم دی چې لیکل پرې کوي . څوک کړکېچ لیکنې پرې کوي او څوک عبثیات او چټي لیکنې پرې کوي څوک د رحمن الله تعالیٰ له حکم سره سم خپل قلم چلوي او څوک د طاغوت د خوشالتیا او د شیطان په ډیکته سره لیکنه کوي څوک له فطرت سره سم لیکل کوي او څوک د خپل پښځ په خلاف لیکل کوي .

---

(1) البدایه والنهایه، ج اول، ص ۸، د مسند احمد او ترمذی مروی حدیث

(2) تفسیر قرطبي، ج ۱، ص ۸۲، جزء ۲۰ .

په هر صورت امام قرطبي رحمة الله علیه د لیکلو تاریخ او قلم په همدغو دوو ډولونو بنود لی دی او دغه درې واړه قلمونه او ددوی د لیکلو تاریخ پنځه زره کلونه څه چې له دېرو مود وڅخه پخوانی دی او هغه داسې چې لومړی قلم او دهغه لیک خوله کړیونو کلونو څخه هم پخوانی دی او د هغه تاریخ صرف الله تعالیٰ ته معلوم دی ، ځکه چې د ځمکې د پیدا ایښت تاریخ دوه سوه زره میلیونه کلونه دی، نو د قلم پیدا ایښت او دهغه د لیکنې تاریخ خو ډېر پخوانی دی.

دغه راز دویم ډول قلم ، یعنې د پرښتو قلم تاریخ هم ډېر پخوانی دی او د هغه خلقت او د لیکلو د تاریخ علم یوازې الله تعالیٰ ته دی ، دیتر د څېړنو په وس کې نشته ، چې معلوم یې کړي.

دغه راز ددریم ډول یعنې انساني قلم او لیک تاریخ هم پنځه زره کلن نه دی ، بلکه درې سوه زره کلونه پخوانی دی او له بابا آدم سره سم میتخته راغلی دی ، او د کمونستانو ملحدینو او نورو د غیر اسلامي عقیدې خاوندانو دا نظر بېر ګمراه کوونکی دی چې وایي : د لیک پر تاریخ صرف پنځه زره کلونه تېر شوي دی .

⑤ بله دا چې د لکونو کلونو پخوانی انسان وحشي نه وُ بلکې د بشري تمدن ، بشري تهذیب ، بشري ثقافت او ادب بنسټ کېښودونکي هماغه لومړني انسانان دی او له .

هغوی څخه وروسته بشریت صرف ځینې نوښتونه او تطورات یکې راوستلي دي، وده یې ورکړې ده او بس. بنسټ ایښودونکی د هرصناعت هغوی دی او هغوی ته وحشي ویل نه یوازې داچې نمک حرامي ده، بلکې بواح کفر دی، ځکه چې دکړدو مشروع صنعتونو

چې لیک هم یکې شامل دی، ایجادو ښکې او رامنځ ته کوونکی انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام وو.

(٦) د لیک لوست توري او الفباء دلومړي قلم له منځته راتلو او پیدا اېښت سره سم منځته راغلي وه او بیا دحضرت آدم علیه السلام په ځکه کې له مشتکېدو سره یو ځای پیدا شوی او دالله تعالیٰ له پلوه پرې نازل شوی وو. د الحادي او غیراسلامي عقاید و دخاوندانو داخبره درواغ ده چې وایي الفباء وروسته ایجاد شوې ده. اولکه چې مونږ دمخه په حدیث شریف سره ثابته کړه چې الفباء په آدم علیه السلام باندې په ځانګړې صحیفه کې نازل شوي وو.

(٧) شعور پرماده باندې وړاندې والی لري، شعور اصل دی او ماده فرع ده. او په دې اړونده دلایل په دې کتاب کې د همدې عنوان لاندې په تفصیل سره راغلي دی، چې دهغو په رڼا کې دملحدینو داخبره بې اساسه او تېراېستونکې ده چې وایي: "ماده پرشعور باندې مقدمه ده"، ددوی داخبره په علمي دلایلو سره رد کړای شوې ده.

د شعور په هکله د کمونستانو او ملحدینو دا خبره هم احمقانه ده چې وايي شعور صرف او صرف دانسان خاصيت دی. ځکه چې شعور په ښاروېو او نورو ژوو کې هم شته چې ده غه پېوزله هغوی له مهلکاتو څخه ځان ژغوري. په دې هکله هم ددې کتاب په متن کې په تفصيل سره دلايل بيان شوي دی.

(۸) تمه اووروستنۍ خبره داده چې ملحدين او غير اسلامي عقايدو خاوندان وايي: شعوري غږونه دا شارو پرځای مينځته راتلل انساني خاصيت دی. دا خبره هم ښېخي غلطه ده. داسلام د سپېڅلي دين د هدايا تو په رڼا کې هر مسلمان ته ښکاره دي چې پرده باندې کروهمن وې چې شعوري آوازونه د پرېښتو هم دی او د پېريانو هم دی او ددغو دواړو عالمونو موجوداولی په عقل سره نه بلکې په نقل سره دی.

د پېريانو او ملائکو له وجود څخه انکار کول په شريعت کې داسې دي لکه له الله تعالیٰ څخه او له قيامت څخه انکار کول. لکه څرنګه چې دهغو دواړو په انکار سره منکر د اسلامي شريعت په حکم کافر کېږي، د غه راز د ملايکو او پېريانو له وجود څخه انکار کول هم کفر دی، ځکه چې د دغو دواړو وجود هم په قرآن او نبوي سنتو سره ثابت دی، له همدې کبله د اسلامي امت د علماؤ د اجماع په اتفاق سره د پېريانو او پرېښتو له وجود

څخه انکار کول کفر دی.

دغه راز د پرېښتو او پېریانو خبرې کول هم په قرآن کریم سره ثابت دی. له انبیاؤ سره د پرېښتو مکالمې په قرآن او حدیثو کې راغلې دي. له حضرت موسیٰ(ع)، حضرت آدم(ع)، حضرت ابراهیم(ع) او دهغه له بي بي سره او له خاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره د حضرت جبرائیل او حضرت عزرائیل علیهما السلام خبرې اترې کول په قرآن کریم او نبوي احادیثو کې په تکرار سره ذکر شوي دي.

دغه راز د پېریانو آوازونه او خبرې کول هم په قرآن کریم او احادیثو کې راغلي دي. د قرآن کریم د "جن" سورت او د احقاف سورت دواړه پر دې باندې شاهدي کوي. او په احادیثو کې دهغوی هاغه خبرې ذکر دي چې له نبي کریم صلی الله علیه وسلم او او صحابو کرامو سره یې په مختلفو وختونو کې په مختلفو موضوعاتو کې کړې دي.

نو په همدې اساس دا خبره د شریعت خلاف ده چې شعوري آوازونه د انسان خصوصیت دی، ځکه چې دغه خبره هیڅ مسلمان نه کوي، بلکې دکمونیزم د غیرانساني او وحشي مسلک د طاغوتي او الحادي مفروضو منونکي یې کوي، څو بشریت له خپل بنځیز او اصلي مسیر څخه منحرف

# د مصنف چاپ شوې کتابونه



| | |
|---|---|
| ١- قدوة الاحکام ، حدیث | تالیف |
| ٢- اسلامي اقتصادي نظام | تالیف |
| ٣- اسلامي قیادت | تالیف |
| ٤- د کمونیزم سره بربدکی | تالیف |
| ٥- کا جي بي | تالیف |
| ٦- جهاد او غنیمت برنده جایزه | تالیف |
| ٧- د جهاد اداب | تالیف |
| ٨- ناروا دودونه او... | تالیف |
| ٩- اخوان المسلمین | تالیف |
| ١٠- تلپاتي ژوندي | تالیف |
| ١١- حج او عمره | تالیف |
| ١٢- د روژې احکام | تالیف |
| ١٣- سي آی اې | تالیف |
| ١٤- برمیال شهید | تالیف |
| ١٥- د فلسطین مستعمره کول... | تالیف |
| ١٦- هجرت او مهاجر | تالیف |
| ١٧- غازي | تالیف |
| ١٨- ترجمان الحق | تالیف |
| ١٩- فکري استعمار | تالیف |
| ٢٠- افغانستان بعد تداخل الروس | تالیف |
| ٢١- په اسلام کې د حزب جوړولو حکم | تالیف |
| ٢٢- د سلام شرعي اداب | تالیف |
| ٢٣- د میړه او ښځې یو پر بل حقوق | تالیف |
| ٢٤- اسلامي حجاب | تالیف |
| ٢٥- إستیذان | تالیف |
| ٢٦- ناروا خون | تالیف |
| ٢٧- د حدیث پوهنې اصول | تالیف |
| ٢٨- د محمد بن عبدالوهاب اصلاحي... | تالیف |
| ٢٩- بواسیر او د هغوی علاج | تالیف |
| ٣٠- درشل | تالیف |
| ٣١- انجنیر احمد شاه سوانح | تالیف |
| ٣٢- د سناتور غلام سخي خان سوانح | تالیف |
| ٣٣- د افغانستان ملت ظاهر شاه... | تالیف |
| ٣٤- د ژبو او لیک اسلامي تاریخ | تالیف |
| ٣٥- حماس یا د انتفاضه تحریک | تالیف |
| ٣٦- ابن کثیر ١٠ ټوک | ترجمه |
| ٣٧- اسلامي تعذیب او ترون | ترجمه |
| ٣٨- کتاب التوحید | ترجمه |
| ٣٩- زیارة القبور | ترجمه |
| ٤٠- د نبي کریم (ص) لمونځ | ترجمه |
| ٤١- له مسلمانانو ښځو څخه... | ترجمه |
| ٤٢- اسلامي حکومت | ترجمه |
| ٤٣- فضل الاسلام | ترجمه |
| ٤٤- اصحاب صفه | ترجمه |
| ٤٥- صحیح عقیده | ترجمه |
| ٤٦- شعب الایمان | ترجمه |
| ٤٧- المأثورات | ترجمه |
| ٤٨- اتباع الرسول | ترجمه |
| ٤٩- رساله تعلیم | ترجمه |
| ٥٠- عقاید | ترجمه |
| ٥١- کتاب الکبائر | ترجمه |
| ٥٢- د ابن باز جهادي فتوی | ترجمه |
| ٥٣- پر سنتو عمل فرض دی | ترجمه |
| ٥٤- عکس او تصویر د اسلام... | ترجمه |
| ٥٥- د حج او عمرې مسایل | ترجمه |

چاپ : دانش کتابخانه، ډهکي نعلبندی قصه خوانی